


**د پوهنې وزارت**
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د
روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود

# شپږم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش.

د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود
شپږم ټولګی





unicef
د هر ماشوم لپاره
برای هر طفل






د پوهنې وزارت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د

روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د

تألیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د ټولنیزو لوستونو د تدریس لارښود

## شپږم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۶هــ.ش.

**مؤلفان:**

– د سرمؤلف  مرستیال قدیم «شیرزی بابکرخیل»

– د سرمؤلف  مرستیال عبدالمالک «عابد»

– د سرمؤلف  مرستیال محمد رفیق «مومند»

– مؤلف غلام سرور «گلاب زی»

– مؤلف سید حبیب الله «ولیزاده»

**مسلکي اډيټوران:**

- د سر مؤلف مرستیال قدیم شیرزی «بابکرخیل» د ټولنیزو علومو د بخش آمر.

-پوهنیار محمد فاروق «عمرخیل».

**- ديني ،سياسي او فرهنگي کميټه**

– حبیب الله « راحل» د تعلیمي نصاب د پراختیا په لوی ریاست کې د پوهنې وزارت سلاکار.

**د څارنې کميټه:**

- دوکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین

- دوکتور شیر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول

- سرمؤلف عبدالظاهر گلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

**کمپوز او ډیزاین**

**رحمت الله غفاری**

الماس ظفری



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی　　دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې　　هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی　　د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو　　د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي　　پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي　　هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي　　لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به　　لکه زړه وي جاویدان

**بسم الله الرحمن الرحیم**

## دپوهنې د وزیر پیغام

دلوی خدایﷻ ډیر شکردی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پرگانڼه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پرگران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺچې د انسانیت ستر ښوونکی دی او درحمت، لارښوونې او روښنایی پیغام راوړونکی دی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او دهغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب دښوونې اوروزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه پـه اوږه د ټـولنې لـه اړتیـاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نـوو لاسـته راوړنـو سـره مـل دینـي او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتـو او تـالیف شـوی دی. دپـوهنې وزارت تـل زیـار باسـي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جـوړ او لـه علمـي معیـارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو اسـتعدادونه پـه ټولـو اخلاقـي او علمـي خـواوو کـې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیـواد پـالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهی پـه وړانـدې یـې جګـړه خپله دنده ګرځولی، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیـق کـې د هیـواد ماشـومان، نجـونې او تنکـي ځوانـان د پـوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برى د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، پـه تیـره بیـا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړلو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکـو لـه محترمـو اولیـاوو څخـه هیلـه کیـږي چې پـه خپلـو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب پـه چمتـو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻڅخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانی له موږ سره د پـوهنې د سـپیڅلو ارمـانونو پـه لاسـته راوړلـو کـې مرسـته وکړي. انه سمیعٌ قریبٌ مجیب.

**دپوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

# سرلیکونه

## (لومړی) لوست

**وخت: (یو درسي ساعت)**

<table>
<tr><td>سرليکونه</td><td colspan="3">دمطلبونو شرح</td></tr>
<tr><td>د لوست موضوع</td><td colspan="3">زموږ هېواد</td></tr>
<tr><td>عمومي موخه</td><td colspan="3">زده کوونکي دې زموږ د ګران هېواد په اړه معلومات ترلاسه</td></tr>
<tr><td>پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.</td><td colspan="3">زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>●د هېواد د جغرافيايي موقعيت او پرخوالي سره به بلد شي.<br>●د هېواد موقعيت به د نړۍ په سياسي نقشه کې پيدا کړای شي.<br>●د اقتصاد له پلوه به د افغانستان پر جغرافيايي اهميت باوري شي.</td></tr>
<tr><td>د لوست لارې چارې</td><td colspan="3">مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت...</td></tr>
<tr><td>د لوست اړين او مرستندويه توکي</td><td colspan="3">کتاب، تخته،تباشير، انځورونه...</td></tr>
<tr><td>دارزونې لارې چارې</td><td colspan="3">تحريري، تقريري...</td></tr>
<tr><td>لومړني فعاليتونه او د انګيزې رامنځته کول</td><td colspan="2">لومړني فعاليتونه<br>سلام اچول اوروغبړ، د ټولګي تنظيم او د حاضرۍ اخيستل.<br>د انګيزې پيدا کول:<br>ستاسو په آند، زموږ هېواد په کومه وچه کې پروت دی؟</td><td>وخت<br>۱۰دقيقې</td></tr>
<tr><td>د ښوونکي فعاليتونه</td><td colspan="2">د زده کوونکوفعاليتونه</td><td>وخت</td></tr>
<tr><td>- ښوونکی د نوي لوست سرليک د تختې پرمخ ليکي او د زده کوونکو پام د کتاب د متن نقشې ته را اړوي .<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته ځو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي.<br>په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ  وليکي او معنا دې کړي.</td><td colspan="2">- زده کوونکي د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې</td><td>۳۵دقيقې</td></tr>
</table>

| | | |
|---|---|---|
| - لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې گاونډې هېوادونه په نقشه کې وښايي او د هغوی نومونه بیان کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- افغانستان شپږگاونډي هېوادونه لري.

۲- زموږ د هېواد پراخوالی ۶۵۲۰۰۰ کیلو متر مربع دي.

۳- زموږ د هېواد شمالي گاونډي هېوادونه له تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان جمهوریتونو څخه عبارت دي.

## اضافي معلومات

افغانستان یو غرني هیواد دی چې د آسیا د لوی وچې په سویل کې، په شمالي نیمه کره (د استوا د کرښې په شمال کې او په شمالي نیمه کره کې (د لندن د گرینویچ د کرښې د ختیځ لور ته موقعیت لري، زموږ هېواد د څلورو خواوو څخه په وچې پورې تړلی دی او سمندر ته آزاده لاره نه لري. د منځنۍ آسیا هېوادونه هم سمندر ته آزاده لاره نه لري، نو له دې امله د هغو هېوادونو سوداگري هم زموږ د هېواد له لارې د سویلې آسیا د هېوادونو او د نړۍ د نورو هېوادونو سره ترسره کیږي. چې دې موضوع افغانستان ته مهم اقتصادي اهمیت ورکړی دی.

د آریانا د ایرت المعارف کې لیکل شوي دي: (هغه هېواد چې د نړۍ په معاصر تاریخ کې د افغانستان په نوم یادیږي، په منځنیو پیړیو کې د خراسان او په لرغونو زمانوکې د آریانا په نوم شهرت درلوده.) زیاتره افغاني تاریخ پوهان موافقه لري چې افغانستان ډېر پخوا د آریانا په نوم یاد شوی وو.

ارتس تن په (۱۹۶-۲۷۶ق.م) کې لومړنی یوناني لیکوال دی چې د آریانا نوم یې د ایران د مرکزي دښتو څخه تر سند سیند پورې سیمو لپاره استعمال کړی دی.

**خراسان:** په پهلوي ژبه کې د ختیځ په معنا دی و دا اصطلاح د ساسانیانو د واکمنۍ په دوره کې د درېیمې میلادي پیړۍ څخه وروسته او د پنځمې څخه تر نولسمې میلادي پیړۍ پورې د افغانستان او د هغه شاوخوا سیمو لپاره استعمال شوی ده. زموږ هېواد د اعلحضرت احمدشاه بابا په واکمنۍ کې د افغانستان په نوم نومول شوی دی.

## (دویم) لوست

**وخت : (یو درسي ساعت)**

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | **دولت ته د ټولنې اړتیا** | |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې دولت ته د ټولنې د اړتیا په اړه معلومات ترلاسه کړي. | |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• دولت ته د ټولنې په اړتیا باندې به پوه شي.<br>• دولت ته د ټولنې اړتیاوې به بیان کړای شي.<br>• دولت ته د ټولنې اړتیا او ټولنې ته د دولت اړتیاوې به وپیژند لای شي. | |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه اوډله ییزفعالیت... | |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته،تباشیر، د کورنۍ ځو انځورونه ... | |
| دارزونې لارې چاري | تحریري، تقریري... | |
| لومړني فعالیتونه او د انگیزي رامنځته کول | **لومړني فعالیتونه**<br>سلام اچول او روغبړ ، د ټولگي تنظیم ، د حاظرۍ اخستل ، د کورنۍ دندي لیدل ،د تیر لوست څخه پوښتنې او له نوي لوست سره تړاو ورکول.<br>**د انگیزي پیدا کول**<br>– د بېلگې په توگه: څه فکر کوئ ولې ټولنه دولت ته اړتیا لري؟ | وخت<br>۱۰دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د نوي لوست سرلیک د تختې پرمخ لیکي .<br>– د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>– وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>– زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>– په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي | – زده کوونکي د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>– په غور سره غوږ نیسي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>– له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>–کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. | **۳۵دقیقې** |

| | | |
|---|---|---|
| | - په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې دولت او نظام د اهمیت په اړه خبرې وکړي<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. |

## د متن پوښتنو ته ځوابونه

۱- د انسانانو یوه ټولگه چې د اوږده مهال لپاره په یوه سیمه کې گډ ژوند کوي؛ ټولنه ورته ویل کیږي.

۲- ټولنه د قانون د پلي کولو لپاره، د نظم ساتلو، د کورني او بهرني امنیت د ټینگولو لپاره دولت ته اړتیا لري.

۳- دولت دنده لري، چې د بیلابیلو ادارو ترمنځ همغږي رامنځته کړي او د یرغل پروړاندې د خلکو د ځان، مال، ناموس او د دین ساتنه وکړي.

## اضافي معلومات

ټولنه د انسانانو هغه ټولگه ده چې د اوږده مهال لپاره په یوه سیمه کې د خپلو گډو گټو لپاره ژوند کوي. د دوی په منځ کې ټولنیزي، کلتوري، سیاسي او اقتصادي اړیکي موجودی وي او د یوه قانون اطاعت کوي.

هره ټولنه یو دولت ته ډېره اړتیا لري او هیڅ دولت نه شي کولای چې پرته له یو مشر او یا رهبر څخه جوړه شي، چې دغه رهبر په بیلابیلو نومونو یادیږي. دولت دنده لري چې د خلکو لپاره یوشمیر قوانین وضع او د قوانینوپه پلي کولو سره ټولنیز عدالت رامنځته کړي ترڅو د خلکو حقوق تر پښو لاندې نه شي او هم د هیواد له ځمکنۍ بشپړتیا څخه ساتنه وشي.

## (دريم) لوست

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **اساسي قانون** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د هېواد د اساسي قانون په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د هيواد له اساسي قانون سره به بلد شي.<br>• په ټولنه کي به د اساسي قانون ګټې او اړتياوې وړاندې کړای شي.<br>• په ټولنه کي به د قانون د پلي کيدلو به ارزښت او اهميت پوه شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند، په ټولنه کې د قانون شتون څه ګټه لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br><br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي.<br>په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br><br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشريح کوي.<br><br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د اساسي قانون په اړه خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست لهمتن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | <br><br>- زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>- کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

۱- قانون د هغو مقراراتو څخه عبارت دی چي دولت يې جوړ وي او اعلانوي يې، ترڅو خلك د ټولني د امن او نظم لپاره هغه مراعات کړي.

۲- په يو هيواد کې ترټولو مهم قانون د هغه اساسي قانون دی

۳- هره ټولنه د نظم د رعايت او د بې نظميو د مخ نيوي لپاره قانون او مقرراتو ته اړتيا لري.

## اضافي معلومات

اساسي قانون هغه قانون دی چي د حکومتي نظام اصول او مقررات، د حکومت څرنگوالی، د هغه حدود او اختيارات، د هيواد د اداره کولو قوه، د وگړو حقوق او د دندو بنسټ ټاکي. اساسي قانون په حقيقت کي د حاکم نظام تعيين کوونکی دی، قانون معلوموي چي ځواك او قدرت په کوم ځای پورې تړلی دی، د دې حاکم واك او قدرت اړيکې د ملت د خلکو د حقوقو او آزاديو سره څرنگه دی؟ او دغه قدرت چې مقننه قوه، اجراييه او قضايه قوې دي، د ملت په وړاندې کوم مسوليتونه او دندې لري؟ سربيره پردې اساسي قانون د يو هيواد ترټولو عالي حقوقي سند او د نورو قوانينو د تنظيمولو رهنما دی. هيڅ يو قانون او مقررات بايد د اساسي قانون سره توپيرونه لري.

## (څلورم) لوست

### وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | زموږ دولت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې زموږ د دولت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• زموږ د دولت د نظام له څرنګوالي سره به بلدشي.<br>• د دولت د دريځونو قواو دندې به بيان کړای شي.<br>• د دولت د ساتنې او د هېواد د مشروع نظام سره به مينه پيدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسوپه اند،زموږ ددولت دندې او صلاحيتونه کوم دي؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د درې ګونو قواوو په اړه خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ور کړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- اسلامیت او ولسي توب زموږ ددولت دوه مهمې ځانګړتیاوې دي.

۲- زموږ دولت له دریو قواو څخه جوړ شوی دی: ۱- مقننه قوه ۲- قضاییه قوه ۳- اجراییه قوه.

۳- مقننه قوه د خلکو او دولت لپاره قانون جوړوي چې د ولسې جرګې او مشرانو جرګې څخه جوړه شوې ده.

## اضافي معلومات

دولت په بشري ټولنه کي د بشر د ژوندانه په څیر په ټولو برخو کې د پرمختګ لاره وهلې ده. په پای کې بشر په دې بریالي شوچې یو پر مختللي دولت ته ورسیږي، چي له جمهوري نظام څخه عبارت دی. له نیکه مرغه د افغانستان دولت اسلامي جمهوریت، دی.چي تل زیار باسي، د اسلام د مبین دین د احکامو په رڼاکې په ټولنه کې پرمختګ، سوکالي او سعادت رامنځته کړي.

## (پنځم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | ملي شورا |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ملي شورا په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د ملي شورا له جوړښت سره به بلد شي.<br>• د ملي شورا دندې به وړاندې کړای شي.<br>• ملي شورا ته به د یو قانون جوړوونکي ادارې په توګه اهمیت ورکړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند، ملي شورا څه اهمیت لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده‌کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ملي شورا ددندو په اړه خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- ملي شورا د لومړي ځل لپاره په ۱۳۱۰ لمریز کال د محمد نادرشاه د سلطنت په دوره کې جوړه شوه.

۲- **د ملي شورا دندې**: قانون جوړول، د اجراییه له قوې نه څارنه او د خلکو څخه استازیتوب دی.

۳- د ملي شورا هرکمیسیون دنده لري، ترڅو د قوانینو او د نورو موضوگانو لومړني وړاندیزونه وڅېړي او د وورستي تصمیم لپاره یې عمومي مجلس ته وړاندې کړي.

**اضافي معلومات**

**ملي شورا**

د پارلمانونو تر ټولو مهمې دندې څه دي؟

د پارلمان له مهمو دندو څخه یوه دقانون جوړول دي. خو د هغې دنده یواځې په قانون جوړولو نه تمامیږي. پارلمانونه په اوسنۍ نړۍ کې څو دنده ییز مرکزونه دي؛ پارلمان د هېواد سیاسي دماغي مرکز دی. پارلمان د عصر او زمان د غوښتنو او بدلونونو پربنسټ قوانین اصلاح او د ټولنې د هینداري په شان عمل کوي.

د بودجې کنترول، د استازیتوب نقش، د زده کړې نقش، د اصلاع رسولو نقش، د زده کړې نقش او داسې نور د پارلمان تر ټولو مهمې دندې دي.

**په پارلمان کې ځواب ورکول په څه معنا او په څه دلیل دي؟**

په پارلمان کې د اجراییې قوې ځواب ورکول په دې معنا دي چې پارلمان د خلکو له غوښتنو څخه استازیتوب کوي، په دې توگه اجراییه قوه باید تل تر خپل کنترول او څارنې لاندې ونیسې، ترټولو پیاوړی عنصر چې پارلماني دموکراسۍ ته قوت ورکوي؛ همدغه د ځواب ورکولو دنده ده. د پارلمان غړي خلکو ته ځواب ورکوونکي دي. له دې امله دولت ته هم ښایي چې پارلمان ته ځواب ورکړي، د تصمیمونو د نیولو په بهیرکې د دولت له خوا پارلمان ته ځواب ورکول اړین دي. همدغه ځواب ورکول د دولت د تصمیم نیولو کیفیت پورته وړي او یا کولای شي چې د ببړني حالت مخه ونیسي. البته رسنۍ هم د دموکراسۍ یوه مهمه برخه ده په دې ترڅ کې مهم رول لري، ځکه چې د خلکو د کړنو څارونکي دي او کولای شي چې د خلکو اقتصادي او ټولنیزې ستونزې راڅرگندې کړي او له پارلمان سره هم مرسته وکړي.

## (شپږم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **ولسي جرگه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ولسي جرگې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د ولسي جرگې د دندو او صلاحیتونو سره به بلد شي.<br>• د ولسې جرگې له دندو او واکونو سره به بلد شی.<br>• د ولسي جرگې جوړښت به بیان کړای شي. |
| د لوست لارې چارې | ډلیز فعالیت مباحثه، پوښتنې او ځوابونه... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>-ستاسو په آند، د خلکو آستازي څنگه ولسي جرگې ته لار پیدا کوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ولسې جرگې د صلاحیتونو په اړه خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د ولسي جرګې غړي د هېواد د (۳۴) ولایتونو څخه د پنځو کالو لپاره د خلکو د رایو په واسطه ټاکل کیږي.

۲- د ولسي جرګې غړي د خپل مینځه رئیس، معاون او د ولسي جرګې منشي. (اداري هیات) ټاکي.

۳- د ولسي جرګې صلاحیتونه عبارت دي له: د قوانینو تصویب، د بودیجې تصویب، وزیرانو ته د اعتماد د رایو ورکول او د حکومت له کارونو څخه څارنه ده.

**اضافي معلومات**

**ولسي جرګه**

ولسي جرګه د افغانستان د ملي شورا د استازو مجلس دی، د افغانستان د اساسي قانون د (۹۱) مادې پر بنسټ د دې مجلس دندې په لاندې ډول دي:

- د اساسي قانون د (۹۲) مادې د حکم پر اساس د هریو وزیر د استیضاح په اړه تصمیم نیول.
- د پراختیایي پروګرامونو او د دولتي بودجې د مقررولو د تائید یا رد په اړه د اساسي قانون د حکم له مخې تصمیم نیول.
- ولسي جرګه (۲۴۹) استازې لري چې په هرو (۵) کالو کې یوځل په عمومي ټاکنو کې معلومیږي.لږ تر لږه (۶۴) استازې باید له ښځو څخه وي او (۱۰) استازید کوچیانو له خوا ټاکل کیږي.

**- د ولسي جرګې او مشرانو جرګې اړیکه**

**دري یيمه ماده:** د قانون د متن طرحه چې د یوې جرګې لخوا تصویب شي، بلې جرګې ته استول کیږي. کله چې د حکومت د قانون طرح د ولسي جرګې لخوا رد شي، مشرانو جرګه د قانون د متن په طرحه چې د حکومت لخوا وړاندې شوی وي غور کوي. کله چې د غړو د قانون وړاندیز (طرحه) د اړونده جرګې لخوا رد شي، داسې طرحې د مجلس په اجندا کې نه نیول کیږي.

**څلورنوییمه ماده:**کله چې یوه جرګه د بلې جرګې مصوبه رد کړي، د شخړو د حل لپاره، د دواړو جرګو څخه ګډ هیئت په مساوي شمیر سره ټاکل کیږي. د ګډ هیئت غړي د اړونده کمیسیون په وړاندیز او د عمومي غونډې په تصویب ټاکل کیږي.

**پنځه نوییمه ماده:** د ګډ هیئت لومړنۍ غونډه د هیئت د غړو د ټولو مشر غړي تر ریاست لاندې د رئیس او مرستیال د ټاکلو لپاره جوړیږي.

هیئت؛ خپل رئیس او مرستیال په ترتیب سره چې رئیس له یوې جرګې او مرستیال له بلې جرګې څخه وي د دې اصولو د مندرجه موادو پر رعایت کولو سره ټاکي. ګډ هیئت د وړاندې شوې طرحې (وړاندیز) په اړه خپل بحثونه د تقنیني کمیسیونونو د طرزالعمل په اساس تنظیموي. کوم وزیر چې د قانون طرحه یې وړاندې کړې ده په دې خبرو او بحثونو کې به موجود وي.

## (اووم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | مشرانو جرگه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د مشرانو جرگې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کی لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د مشرانو جرگې له صلاحیتونو او دندو سره به بلد شي.<br>• د مشرانو جرگې د غړو ټاکل کېدلو څرنگوالي به وړاندې کړای شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ د مشرانو جرگې څو غړي انتصابي دي؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د مشرانو جرگې دندو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کېږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵<br>دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د مشرانو جرگې دوه ثلثه غړي انتخابي او یو ثلث یې انتصابي دي.

۲- یو ثلث یې د ولایاتو د شوراگانو څخه او بل ثلث یې د ولایاتو د ولسوالیو له شوراگانو څخه ټاکل کیږي.

۳- د مشرانو جرگې غړي د ولایاتو او ولسوالیو د شوراگانو له لارې ټاکل کیږي.

## اضافي معلومات

### مشرانو جرگه

مشرانو جرگه د افغانستان د ملي شورا اوچت مجلس دی، د افغانستان مقننه قوه له دوو مجلسونو څخه جوړیږي، چې ولسي جرگه او مشرانو جرگه نومیږي.

مشرانو جرگه یوه قانون جوړوونکې مشورتي او څاریزه اداره ده، تر یوې اندازې د قوانینو د (وتو) حق لري.

د افغانستان د اساسي قانون د (۱۰۰) مادې پر بنسټ؛ «کله چې د یو مجلس مصوبه د بل مجلس لخوا رد شي؛ د اختلافاتو د حل لپاره له دواړو مجلسونو څخه په مساوي شمېر سره گډ هئیت ټاکل کیږي. د هئیت پریکړه د جمهور رئیس له توشیح وروسته نافذ گڼل کیږي. په هغه صورت کې چې گډ هئیت ونشي کولای د نظر اختلاف حل کړي، دغه مصوبه واپس کیږي. په دې صورت کې ولسي جرگه کولای شي په راتلونکو غونډو کې هغه د ټولو غړو په دوه ثلثه رایوباندې تصویب کړي. دغه تصویب پرته له دې چې مشرانو جرگې ته وړاندې شي د جمهور رئیس له توشیح څخه وورسته نافذ گڼل کیږي.»

مشرانو جرگه تل (۱۶) کمیسیونونه لري، چې د مشرانو جرگې له غړو څخه جوړ شوي دي.

هرکمیسیون یو رئیس، یو منشي او یو مرستیال لري چې د یو کال لپاره د کمیسیون د غړو لخوا ټاکل کیږي.

د مشرانو جرگې دندې د هغې پر کمیسیونونو وېشل شوي دي.

د مشرانو جرگې د اداري هئیتونو څخه نیولې د مشرانو جرگې د ټولو ترسره شویو کارونو پورې، د کورنیو دندو په اصولو کې راغلي دي چې: د مشرانو جرگې کمیسیونونه تر پنځوکلونو پورې د دندو له همدغو اصولو څخه پیروي کوي.

د مشرانو جرگې د بیلابیلو کمیسیونونو د دندو د وېش گټه داده چې د هرکمیسیون کار معلوم او مشخص دی او د وخت له ضایع کېدلو څخه مخنیوی کوي، کارونه په ښه توگه ترسره کیږي او د کمیسیون هرغړی خپل مسوؤلیت پیژني.

## (اتم لوست)

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **اجراییه قوه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې داجراییه قوې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي<br>• د اجرایې قوې په دندو او واکونو به پوه شي.<br>• د اجرایې قوې دندې او واکونه به بيان کړای شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند اجراييه قوه کومې دندې په غاړه لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د اجراييه قوې په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- اجراییه قوه یعنې حکومت چې د وزیرانو څخه تشکیل شوی دی او د ولسمشرتر ریاست لاندې دنده سرته رسوي.

۲- وزیران د ولسمشر او ملی شوراپرووړاندې مسوؤلیت لري.

۳-وزیران باید دافغانستان تابعیت ، لوړې زده کړې ، کاري تجربه ، نیک شهرت او... ولري.

**اضافي معلومات**

په ریاستي سیستم کې اجراییه قوه یا حکومت له ولسمشر او په (پارلماني سیستم کې) له صدراعظم او د کابینې هیئت او د وزیرانو له هیئت څخه جوړ شوی دی. دا ارگان د مقننه قوې د قوانینو او تصمیمونو د تطبیقولو او عملي کولو، د هېواد د چارو اداره کولو او د کورني او بهرني سیاست د چلولو مسؤولیت پرغاړه لري. په بیلابېلو نظامونو کې د اجراییه قوې دندې هم تریوه کچه توپیر لري.

په دې معنا چې په ځینو نظامونو کې اجراییه قوا ډېر واکونه لري خو په نورو رژیمونو کې محدود کېدلی هم شي، د بېلگې په توگې: په ریاستي نظامونو کې ولسمشر د اجراییه قوې په سرکې ځای لري او له بلې خوا په دې ډول سیستمونوکې د قواو تفکیک شتون لري، له دې کبله د دغو هېوادونو د اجراییه قواو دندې له هغو هېوادونو سره توپیر لري کومې چې د پارلماني سیاسي نظام لرونکي دي.

## (نهم لوست)

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | قضاييه قوه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د قضاييه قوې په اړه معلومات ترلاسه کړي |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي<br>• د قضاييه قوې د جوړښت سره به بلد شي.<br>• دقضاييه قوې دندې به بيان کړای شي.<br>• په هېواد کې د عدالت د تطبيق کوونکې نهاد په حيث دې د سترې محکمې اهميت ته قايل شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند: قضاييه قوه څه دندې لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د قضاييه قوې په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- قضاییه قوه دسترې محکمې، د استیناف محکمې اود ابتداییه محکمې څخه جوړه شوې ده.

۲-قاضیان د قضیو په څېړونوکې د اساسي قانون او نورو قوانینو څخه ګټه اخلي.

۳-قاضیان په خپلو اجرااتوکې خپلواکه دي او یوازې د اساسي قانون او نورو قوانینو تابع دي.

## اضافي معلومات

**قضاییه قوه**

ستره محکمه د هېواد د قضایي عالي ارګان په توګه ، د افغانستان د اسلامي جمهوریت دقضاییه قوې په سرکې قرار لري. ستره محکمه د لاندې څانګو څخه تشکیله شوې ده.

۱- عمومي جزایي څانګه (دیوان)

۲- د عامه امنیت څانګه (دیوان)

۳- دمدنی او دعمومي حقوقو څانګه (دیوان)

۴- د سوداګرۍ څانګه (دیوان)

د سترې محکمې دڅانګو رئیسان لاندې دندې او واکونه لري.

۱- د اړوندو څانګو د فعالیتونو لارښونه

۲- د اړوندو څانګو د جلساتو جوړول او دهغو ریاست کول.

۳- د اړوندو څانګو دکارونو تنظیم، د قضایي تجربو توحید او سترې محکمې ته د ګذارشونو وړاندې کول.

ستره محکمه د قضایي مشاورینو لرونکې ده چې شمېرېې له شپږدېرشو غړو څخه نه زیاتیږي. د سترې محکمې مشاورین د هغو قاضیانو له منځه غوره کیږي چې د پوره کفایت او اهمیت لرونکی وي او لږترلږه لس کاله یي عملاً قضایي فعالیتونه سرته رسولي وي . په دیوانونوکې د قضایي مشاورینو مقررول د سترې محکمې د رئیس کار دی. قضایي مشاورین د راغلو قضییو تحلیل او ارزونه کوي ، ګذارش یې ترتیب او دپریکړو لپاره یې قضایي جلسو ته وړاندې کوي.

## (لسم لوست)

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د افغانستان وياړونه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د افغانستان د وياړونو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي<br>• په سيمه کې به د افغانستان له موقعيت او وياړونو سره بلد شي.<br>• د افغانستان د مشهورو کسانو نومونه به بيان کړای شي.<br>• هېواد ته د وياړونو دلاس ته راوړولو لپاره به علاقه مند شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند، د افغانستان وياړونه کوم دی.<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د افغانستان د وياړونو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- افغانستان د نړۍ په هېوادونوکې ځانګړی مقام لري او د سیمې په کچه د اسیا په زړه کې پروت دی.

۲- افغانستان په اسلامي تمدن کې څرګند رول ترسره کړی دي.

۳- د افغانستان د خلکو له ویاړونو څخه یو دادی چې: د تاریخ په اوږدوکې یې د پردیو د غلامۍ رسۍ منلي نه ده.

**اضافي معلومات**

د نورو معلوماتو لپاره دې لاندنیو سرچینو ته مراجعه وشي:

- افغانستان در مسیر تاریخ (میرغلام محمد غبار)
- تاریخ مختصر افغانستان (علامه عبدالحی حبیبي)

## يوولسم لوست

**وخت : يو درسي ساعت**

| | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | زموږ د هېواد ولايتونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د هېواد د ولايتونو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.**<br>• د هېواد د ولايتونو له موقعيت او له مرکز سره به يې اشنا شي.<br>• د خپل ولايت موقعيت به په سياسي نقشه کې پيدا کړای شي.<br>• د ولايتونو د پېژندنې د مطالعې سره به مېنه پېداکړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند، افغانستان څو ولايتونه لري ؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې ترڅو زموږ د هېواد د ولايتونه نومونو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱–زموږ هېواد  په ۳۴ ولايتونو وېشل شوی دی.

۲– زموږ هېواد ۳۶۴ ولسوالۍ لري او څو نورې موقتې ولسوالۍ هم ورزياتې شوي دي.

۳– د نقشې پرمخ خپل گاونډي ولايتونه  پيدا کوي.

**اضافه معلومات**

د ۱۳۴۳ هـ .ش. کال د مخه د اعلٰحضرت امان الله خان د واکمنۍ په وخت کې هېواد په پنځو ولايتونواو څلورو اعلی حکومتونو وېشل شوی و او هغه دکابل، کندهار، هرات، ترکستان (د قطغن او بدخشان) ولايتونه وواو اعلی حکومتونه يې: د مشرقي سمت اعلی حکومت، د جنوبي سمت اعلی حکومت، د ميمنې اعلی حکومت او د فراه اعلی حکومت وو.

په ۱۳۴۳ هـ .ش. کال کې  زموږ هېواد د لومړی ځل لپاره په۲۹ ولايتونو يا اداري واحدونو ووېشل شو. د هر ولايت  اداري چارې د والي تر نظر لاندې اداره کېدلې او  د هېواد اداري او قضايي چارې په خپل وار سره په نورو کوچنيو واحدونوچې د ولسوالۍ او علاقه دارۍ په نوم يادېدې وېشل شوې وې.

په ۱۳۷۰ هـ .ش. کال کې د هېواد اداره په ۳۲ ولايتونو او ۲۹۴ ولسواليو ووېشل شوه.

۱۳۸۵  هـ .ش.کال کې د هېواد اداره په ۳۴ ولايتونو او ۳۶۴ ولسواليو و وېشل شوه او په ځينو ولايتونو کې د امنيتي اړتياوپه سبب څو موقتي ولسوالۍ هم منځ ته را غلې او د پنجشير او دايکندي دوه ولسوالۍ د ولايت درجې ته پورته شوې.

# دولسم لوست

**وخت : یو درسي ساعت**

| | |
|---|---|
| | **دمطلبونو شرح** |
| **د لوست موضوع** | **دپاکستان اسلامي جمهوریت** |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې دپاکستان د اسلامي جمهوریت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.**<br>– دپاکستان هېواد سره به بلدشي.<br>– د پاکستان دهېواد موقعیت به د آسیا د لوی وچې په سیاسي نقشه کې پیدا کړای شي.<br>– په زده کوونکو کې به د سوله ایيزې ملگرتیا حس پیاوړی شي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| – ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقیقې |
| – ستاسو په اند، زموږ د هېواد په ختیځ او سوېل کې کوم هېواد موقعیت لري ؟ | – زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | |
| – د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | – د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| | – په غور سره غوږ نیسي. | |
| – د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | | |
| – زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |
| په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>– په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | –کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| – لوست تشریح کوي. | – په غور سره غوږ نیسي. | |
| – له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | – له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| –زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې ترڅو لاندې جدولونه بشپړکړي. | – په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| – د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي. | – ځوابونه ورکوي. | |
| – لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | – د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱–د پاکستان جمهوریت په شمالي نیمه کره کې موقعیت لري او د آسیا د لویې وچې د سوېلي هېوادونو څخه ګڼل کیږي.

۲– د پاکستان د هېواد زیاتره خلک د اسلام د سپېڅلي دین پیروان دي.

۳– د پاکستان دخلکو رسمي ژبې اردو او نګلیسي او نورې ژبې یې پښتو، پنجابي، سندي او بلوچي دي.

**اضافه معلومات**

د پاکستان هېواد چې مخکې دهند د نیمې قارې یوه برخه وه . له دوېمې نړیوالې جګړې وروسته د هند خلکو دانګریزانو څخه د خپلواکۍ د لاس ته راوړلو په موخه پاڅون وکړ.د هند د پاڅون کوونکو د مشرانوپه ډله کې یو هم محمدعلی جناح و چې د مسلمانو مبارزینو په سر کې یې قرار درلوده. د خپلواکۍ او د مسلمانانو د بېلتون لپاره یې په مبارزه پیل وکړ. د مسلم لیګ د ګوند کوښښونه ددې لامل شول چې د ۱۹۴۷م. کال د اګست په ۱۵ د هند د هېواد ترڅنګ بل هېواد د پاکستان په نوم جوړشي. په لومړیو کې ختیځ پاکستان(بنګله دېش) او لوېدیځ پاکستان(اوسنی پاکستان) یو حکومت و چې محمد علی جناح یې لومړنی مشر(رهبر) و. په ۱۹۶۰م. کال کې هلته په رسمي توګه اسلامي جمهوري نظام اعلان شو او جنرال سکندر میرزا د دې هېواد لومړنی ولسمشر و. .په ۱۹۷۱م. کال کې ختیځ پاکستان د لوېدیځ پاکستان څخه بېل او خپله خپلواکي یې اعلان کړه.

## دیارلسم لوست

**وخت : یو درسي ساعت**

| | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | دایران اسلامي جمهوریت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ایران د اسلامي جمهوریت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• د خپل لوېدیځ گاونډي هېواد سره به بلد شي.<br>• **دایران** د اسلامي جمهوریتموقعیت به د آسیا د لوی وچې په سیاسي نقشه کې پیدا کړای شي.<br>• په زده کوونکو کې به دگاونډیو هېوادونو سره د ملگرتیا اوسوله اییزو اړیکو حس پیاوړی شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په اند، د ایران اسلامي جمهوریت د هېواد کومې خوا ته موقعیت لري ؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې لاندې جدول په خپلو کتابچو کې بشپړ کړې.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- دایران اسلامي جمهوریت مشهور ښارونه : تهران،مشهد، اصفهان، تبریز، شیراز، اهواز، کرمانشاه او نوردي.

۲- دایران د اسلامي جمهوریت کرنیز مهم محصولات له: وریژو، چای، پومبې، غنمو، چغندرو، جوارو او ډول ډول مېوو په ځانگړي ډول له خرما (کجورو) او پستې څخه عبارت دي.

۳- دایران اسلامي جمهوریت د نړۍ د نفتو او طبیعي گازو د زیاتو زېرمو د لرلو له کبله د داخلي اړتیاوو د پوره کولو سربېره یوه اندازه یې بهر ته هم صادروي.

**اضافي معلومات**

دایران د اسلامي جمهوریت په خواني نوم فارس و. د رضا شاه پهلوي د واکمنۍ په دوره کې په ایران تبدیل شو. دغه شاهي نظام په ۱۳۵۸ هـ . ش. کال کې د اسلامي پاڅون په پایله کې چې زیاترو خلکو یې ملاتړ وکړ، د ایران اسلامي جمهوریت یې اعلان کړ.

د ایران د هېواد اقلیم مختلف دي. شمالي برخې د کسپین سمندرگي تر غاړې معتدل اقلیم او زیات ورښت لري، خو د ختیځو او سوېل ختیځو برخو اقلیم یې وچ اوصحرایي دی یعنې ژمې یې سوړ او اوړی یې تود، دښتې او ورځې د تودخۍ د درجې توپیر یې هم ډېر زیات دی. چې لامل یې په شمالي برخه کې د البرز او په لوېدیځه برخه کې د زاگروس غرونو شتون دی ، چې د شمال لخوا د کسپین دسمندرگي او د لوېدیځ له لورې د سره سمندر د مرطوبو بادونو خنډ گرځي .

**د هغې مهم صنعتونه:** د نفتوچاڼول، لاسي صنایع ، غالۍ اوبدل، د ټوکرانو اوبدل ، د غوړیو تولیدول، د پولادو ویلې کول او نور دي.

## څوارلسم لوست

**وخت : یو درسي ساعت**

| | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د تاجکستان جمهوریت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د تاجکستان جمهوریت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• د تاجکستان هېواد سره به بلدشي.<br>• د تاجکستان د جمهوریتموقعیت به د آسیا د لوی وچې په سیاسي نقشه کې پیدا کړای شي.<br>• په زده کوونکو کې به د ښه ګاونډیتوب حس پیاوړی شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- نقشې ته وګورئ، د تاجکستان د جمهوریت لوېدیځ لور ته کوم هېواد موقعیت لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې لاندې جدول په خپلو کتابچو کې بشپړکړي<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

**۱-** د تاجکستان دجمهوریت په ۱۳۷۰ هـ.ش .کال کې خپلواکی ته ورسېده.

۲- د تاجکستان د جمهوریت شمال لور ته د قرغزستان جمهوریت، ختیځ لور ته یې د چین ولسي جموریت، لوېدیځ لور ته یې د ازبکستان جمهوریت او سوېل لور ته یې د افغانستان اسلامي جمهوریت موقعیت لري.

**۳-** د تاجکستان د جمهوریت کرنیز مهم محصولات له: غنمو، وریژو، پومبې، سبو دد ډول ډول مېوو او نورو څخه عبارت دي.

**اضافي معلومات**

د تاجکستان جمهوریت د منځنۍ آسیا په سویل ختیځ کې د ۳۶ درجو او د شمـــالي عـرض البلدونو د۴۰ دقیقو او ۴۱ درجو او ۵ دقیقو اود ختیځ طول البلدونو د ۶۷درجو او ۳۱ دقیقو، ۷۵ درجو او۱۴ دقیقو ترمنځ موقعیت لري.

د تاجکستان کلمه د دوو برخو (تاجک) او (ستان) څخه ترکیب شوې ده چې د «تاجکانو د هېواد» معنا لري. د لرغون سغد سیمه د اوسني تاجکستان هېواد تشکیلوي، د لومړي داریوش په وخت کې د هخامنشیانو د امپراتورۍ برخه وگرځېدله. د یوناني مقدوني سکندر دیرغل وروسته په ترتیب سره د سلواکي، د یوناني باختر دولت، کوشانیانو،ساسانیانواو یفتلیانو د پاچاهۍ د قلمرو برخه وه.

په ۷۱۵م. کال کې دغه سیمه «د امویانو په وخت کې» د عربي مسلمانانو لاس ته ورغله او خلك یې د اسلام په سپیڅلي دین مشرف شول. دا هېواد د اسلام د سپیڅلي دین له راتلو څخه وروسته د فارسي او دري ژبې او د اسلامي ډول ډول علومو او فرهنگ مرکز وگرځېده .

په لسمه میلادي پېړۍ کې هلته سامانیانو لومړنی خپلواك دولت جوړ کړ. له سامانیانو څخه وروسته د غزنویانو، خوارزمشاهیانو مغولانواو تیموریانو د قلمرو یوه برخه شوه. د تیموریانو د سقوط وروسته تر۱۹ م. پېړۍ پورې ازبکانو ددې سېمې کنترول په لاس کې درلوده. په ۱۹م. پېړۍ کې د تاجکستان شمال (خجند) د خوقند د خانانو او سویلي برخه یې د بخارا د خانانو د قلمرو برخه وه. د بخارا خانان په ۱۲۴۵ هـش. یا (۱۸۶۶م) اود خوقند خانان په۱۲۴۷ هـش. یا په ( ۱۸۶۸م) کال کې د تزاري روسیي ترواکمنۍ لاندې راغلل . دا هېواد په ۱۳۷۰ هـ.ش.(۱۹۹۱م) د شوروي د وېشلو وروسته خپلواکه شو.

## پنځلسم لوست

**وخت : یو درسي ساعت**

| | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **دازبکستان جمهوریت** |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې**د ازبکستان جمهوریت**په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې.** | • **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.**<br>• د ازبکستان هېواد سره به بلدشي.<br>• د ازبکستان د جمهوریتموقعیت به د آسیا د لویې وچې په سیاسي نقشه کې پیدا کړاي شي.<br>• په زده کوونکو کې به د انسان دوستی او ښه گاونډتوب حس پیاوړی شي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقیقې |
| - څه فکر کوئ، د ازبکستان جمهوریت د آسیا د لوی وچې په کومه برخه او زموږ د هېواد کوم خواته موقعیت لري؟ | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |
| - په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې لاندې جدول په خپلو کتابچو کې بشپړ کړې<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د ازبکستان جمهوريت په ۱۳۷۰ هـ .ش.کال کې د شوروي اتحاد د تجزيې وروسته خپلواکۍ ته ورسېده.

۲- د ازبکستان جمهوريت د نړۍ د پومبې ستر توليدوونکی هېواد دی له دې امله د پومبې ستر صادروونکی هېواد هم دی.

۳- د ازبکستان په جمهوريت کې د پولادو، نساجۍ، برېښنايي سامان الاتواو د خوړو توکو توليدي صنايعو پرمختګ کړی دی.

**اضافي معلومات**

ترکستان پر دوو برخو وېشل شوی دی: لوېديځ ترکستان چې دروسانو تر ولکې لاندې و او ختيځ ترکستان چې د چينايانو د واکمنۍ لاندې دی. چيني ترکستان ، د سيکيا نګ په نامه هم يادېږي. د ترکستان خلك د کلتوراو مذهب له پلوه سره يووالی لري. او د ترکانو د استوګنې ځای و، نو له دې امله تاريخ پوهانو د ترکستان په نامه هم ياد کړی دی، څرنګه چې د امو سيند (جيحون) او د سيحون سيند (سيردريا) په دې سيمه کې بهېږي دا سيمه د ماورالنهر په نامه هم يادېږي. په دې سيمه کې د مسلمانانو ډېر تاريخي ځايونه لکه : بخارا، سمرقند، خيوا، خوقند او خوارزم موقعيت لري.

**د ازبکستان جمهوريت:** د منځنۍ آسيا د مهمو هېوادونو څخه دی چې د شمالي عرض البلد د ۳۷- ۴۶ درجو او د ختيځ طول البلد د ۵۶- ۷۴ درجو ترمنځ موقعيت لري.

د اومې ميلادي پېړۍ په دويمه نيمايي کې د مسلمانانو عربانو په راتګ سره د اسلام سپېڅلې دين په دې سيمه کې خپور شو، له دې وروسته شاه اسمعيل ساماني په ۸۷۳م کال کې ماوراء النهر او خوارزم د خپلې ولکې لاندې را وست او په بخارا کې يې د سامانيانو د سلسلې بنسټ کېښود او وروسته په ترتيب سره سلجوقي قبايلو،خوارزم شاهيانو او مغولانو هلته حکومت وکړ. په پايله کې شيبانې کورنۍ بيا د ازبکانو حکومت منځ ته راوړ او ددې کورنې د وروستني رهبر په مړينه د ازبکستان واحد حکومت او يو هېواد له منځ لاړ او ځای يې سيمه ايزوکوچنيو او خپلواکو حکومتونو ونيو. د هغو په منځ کې په بخارا کې استراخانيان، په خوارزم کې د خيوا خانان او په فرغانه کې د خوقند خانان زيات ځواکمن وو او يو د بل د څمکو په نيولو کې يې سره سيالی او جګړې کولې چې دې دوامدارو دښمنيو د روسانو د يرغل شرايط چې د دی سيمې د نيولو په فکرکې وو برابر کړل .

روسانو ، په ۱۸۶۵م . کال کې تاشکند او په ۱۸۶۸م. کال کې سمرقند په خپله ولکه کې راوستل او د سمرقند په نيولو سره د بخارا خانان د روسانو تر واك لاندې راغلل. يو کال وروسته د خيوا خانانو هم ورته عمل وکړ. په ۱۸۷۶م. کال کې دروسانو له خواد خوقند په نيولو دا سيمه ټوله دروسانولاس ته ورغله او د ترکستان واحد ولايت جوړ شو. چې په ۱۸۸۶م. کال کې يې نوم په ترکستان بدل شو. د شوروي له وېش سره سم په ۱۹۹۱م. کال کې د سپتامبر په لومړۍ نېټه د ازبکستان خپلواکي اعلان شوه.

## شپاړلسم لوست

**وخت : یو درسي ساعت**

| | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **دترکمنستان جمهوریت** |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې دترکمنستان جمهوریت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| **پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې.** | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.**<br>• د ترکمنستان هېواد سره به بلد شي.<br>• دترکمنستان د جمهوریتموقعیت به د آسیا د لوی وچې په سیاسي نقشه کې پیدا کړای شي.<br>• په زده کوونکو کې به د ګاونډیو هېوادونو سره د سوله اییزو اړیکو حس پیاوړی شي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| **د لوست اړین او مرستندویه توکي** | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده‌کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br><br>- څه فکر کوئ، د ترکمنستان جمهوریت زموږ د هېواد کومې خواته موقعیت لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې لاندې جدول په خپلو کتابچو کې بشپړ کړي<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | <br><br>- زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br><br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱– د ترکمنستان د زیاترو خلکو کسب کرنه او مالداري ده او د پومبې دتولیداتو له پلوه په نړۍ کې شهرت لري.

۲–ددې هېواد مهم صادراتي توکي : پومبه، سپڼسین ټوکران ، غالی، نفت ، طبیعي ګاز، کیمیاوي او برېښنایي توکي، منسوجات او حیواني محصولات دي.

۳– ډېر مشهور سیندونه یې مرغاب ، هریرود(تجن) او د آمو سیند دی.

**اضافي معلومات**

د ترکمنستان د هیواد نوم د دوو برخو ترکمن او ستان څخه ترکیب شوی دی چې د ترکمنستان د هېواد په نامه یادیږي خلك یې ترکمن دي او په ترکمني ژبې چې د ترکي ژبو له څانګو څخه ده خبرې کوي.

دا هېواد د شمالي عرض البلدونو د ۳۵ – ۴۳ درجو او د ختیځو طول البلدونو د ۵۲– ۶۷ درجو تر منځ موقعیت لري.

د ترکمنستان د هېواد ۸۰ سلنه خاوره د قراقرم دښتو نیولې ده. چې وچ اقلیم لري،ددې دښتو په هغو سیمو کې چې اوبه ولري هلته ګڼ نفوسه کلي او ښارونه هم منځ ته راغلي دي.

د دې هېواد په سوېل کې د کپه داغ د غرونو لړۍ چې د ایران سرحد ته نږدې سیمې دي ښه هوا لري، عشق آباد، مروه او نور مهم ښارونه په دې سیمه کې پراته دي.

د ترکمنستان هېواد د نفتو او طبیعي ګازو سترې زېرمې لري ، هغه نورو هېوادونو ته هم صادروي. مهم بندر یې د کسپین سمندرګي په غاړه د ترکمن باشي(کراسنوودسک) دی.

## (اوه لسم) لوست

**وخت : يو درسي ساعت**

| | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | دچين ولسي جمهوريت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې دچين ولسي جمهوريتپه اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پاى کې لاندې موخو ته ورسيږي.**<br>• د هېواد شمالي ختيځ ګاونډي هېواد سره به بلد شي.<br>• دچين د ولسي جمهوريتموقعيت به د آسيا د لويې وچې په سياسي نقشه کې پيدا کړاى شي.<br>• په زده کوونکو کې به د ګاونډيو هېوادونو سره د سوله ايزو اړيکو حس پياوړى شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۴۵ دقيقې |
| - نقشې ته وګورئ، د چين ولسي جمهوريت ګاونډي هېوادونه پيدا کړئ؟ | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟ | |
| - د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي. | - د نوي لوست سرليک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نيسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |
| - په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي. | |
| - لوست تشريح کوي. | - په غور سره غوږ نيسي. | |
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې لاندې جدول په خپلو کتابچو کې بشپړ کړي | - په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي. | - ځوابونه ورکوي. | |
| - لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د چین د ولسي جمهوریت اقلیم د هغې د پراخوالي او د سمندر څخه د لرې والي او نژدیوالي له امله توپیر لري. د دې هېواد د شمالي برخو ژمي سوړ او دوبی یې معتدل او سویلي برخې یې په ژمي کې معتدلې او دوبی یې تود، اوږد او مرطوب وي.

۲- زموږ له هېواد څخه چین ته پومبه، وړی ، پوستکي او وچې مېوې صادرېږي.

۳- د چین د هېواد څخه زموږ هېواد ته چای، منسوجات، تعمیراتي توکي، راډیو، ټلویزیون، کمپیوټر، ماشین الات او داسې نور شیان واردېږي.

**اضافي معلومات**

چین چې رسمي نوم یې د چین ولسي جمهوریت دی چې د آسیا د لوی وچې په ختیځ کې د نړۍ ګڼ نفوسه هېواد دی چې شمېر یې له یو ملیارد شپږسوه میلیونو تنو څخه زیات دی. چې د چین د کمونست گوند په واسطه د یوه گوندي نظام په چوکاټ کې اداره کیږي.ددې هېواد پلازمېنه پکن یا بیجنگ دی. د چین لرغونی تمدن د تاریخ د ډېرو لرغونو تمدنونو څخه دی، د زیږسېند پرغاړه چې د چین د دښتو د شمال پر لور بهېږي رامنځته شوی دی. د چین سیاسي نظام د شپږو زرو څخه د زیاتو کلونو لپاره مطلقه میراثي سلطنت و، خو لومړنی حکومت چې چین یې سره متحد کړ په ۲۲۱ق.م کال کې د چه این کورنۍ وه او د دې هېواد وروستنۍ شاهي کورنۍ د چینګ کورنۍ ده چې په ۱۹۱۱م. کال کې د چین دملي گوند (کومینتانگ) په واسطه له منځه لاړه او د چین جمهوریت تشکیل شو. د شلمې میلادي پېړۍ په لومړیو کې دا هېواد په دوو سیاسي گوندونو د کومینتانگ او د چین کمونست گوند ووېشل شو. د دواړو ګوندونو ترمنځ کورنۍ جګړې په ۱۹۴۹م کال کې د چین د کمونست ګوند په بریالیتوب سره پای ته ورسېدلې ، کمونستانو د چین د ولسي جمهوریت په نوم حکومت جوړ کړ. د چین ماتې خوړلې حکومت د ګومینتانګ په مشرۍ خپله پلازمېنه د تایوان جزیرې د «تایپه» ښار ته انتقال کړه او اوس یې حکومت په تایوان جزیرې، کینمن، ماتسو او په څو ټاپوګانو پورې محدود دی. له هغه وخته دا دواړه جمهوریتونه د تایوان د ټاپود حاکمیت په سر یو د بل سره اختلاف لري.

په چین کې د عصري اقتصادي اصلاحاتو د راوستلو له مهاله دا هېواد د نړۍ د چټکو او پرمختللواقتصادي هېوادونو څخه دی. اوس مهال دا هېواد په نړۍ کې د کالیو ستر صادروونکی او دویم ستر واردوونکی هېواد دی. د داخلي ناخالصو تولیداتو پر بنسټ د نړۍدویم ستراقتصاد په واک کې لري. چین د ملګرو ملتونو د امنیت د شورا دایمي غړی ، د نړۍ د سوداګرۍ د سازمان، اپک او د شانګهای د مرستو د سازمان غړی هم دی .

## (اته لسم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | ملي يوالي |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ملي یووالي په مفهوم او اهمیت پوه شي |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• د ملي يوالي له کلمې سره به بلد شي.<br>• د ملي يوالي مفهوم به توضیح کړای شي.<br>• په هېواد کې به د ملي یووالي سره مینه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، ولې د یوه هېواد خلك ملي یووالي ته اړتیا لري؟<br>- د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ملي یووالي د اهمیت په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیك ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- ملي یووالی د یوې ټولنې د خلکو یوموټی توب او پیوستون ته وایي چې په ملي پېښو او د هېواد او دولت په ساتنه کې په خپلو کې یووي.

۲-الله (ج) مسلمانانو ته په یووالي او له اختلاف او بیلتون څخه یې په لریوالي امر کړی دی.

۳-په ملي یووالي سره په هېواد کې سوله او امنیت ټینګښدلی شي او د خلکو لپاره د زده کړې، کار او اسوده ګی لارې چارې برابرېږي.

## اضافي معلومات

**ملي یووالی**

یووالي بدلونونو ته د خوځښت ورکولو مهم عامل دی چې انسانان د پرمختګ او بریاوو له لوړو ژورو او ستونزمنو لارو تېروي، کمزورو ته قوت بخښي، سختۍ اسانوي او ناممکن ممکنوي.

نو ملي یووالي د واحد هویت په لرلو سره په هېواد کې د ټولو مېشتو قومونو پیوستون او یوموټي توب ته ویل کېږي په دې معنا چې د هېواد د ټول وګړي د قومي، دیني او مذهبي هویت له مخې د هېواد ملت جوړوي. همدارنګه زموږ په هېواد کې ملت له پښتنو، تاجکو، هزاره و، ازبکو، ترکمنو، بلوچو، پشه یانو، نورستانیانو، ایماق، عرب، قرغیز، قزلباش، ګوجر، براهوي او د داسې نورو قومونو څخه جوړ شوی دی. دغه ټول قومونه د شریکې خاورې یعنې د یوه هېواد او د یوه ملي هویت لرونکي دي او د دې ټولو قومونو (زموږ د ټولو) ملي هویت افغانیت دی. په دې اساس د افغاني ټولنې د وګړو هر وګړی د افغان په نامه یادېږي.

ملي یووالي د خپلواکۍ، آزادۍ، د اقتصادي ودې، دیموکراسۍ، ټولنیز عدالت او قانوني مساوات د ساتنې لپاره اساسي بنسټ ګڼل کېږي.

## (نولسم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | سوله او امنیت |
| عمومي موخه | زده کوونکی دې په ټولنه کې د سولې او امنیت په اهمیت پوه شي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکیدې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• په ژوند کې به د سولې او امنیت په ګټو پوهه شي.<br>• د سولې او امنیت ښېګڼې به بیان کړای شي.<br>• په هېواد کې به د سولې او امنیت له ټینګښت سره مینه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br><br>- ستاسې په فکر، سوله پرته له امنیته راتلای شي؟<br>- د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د سولې او امنیت په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیك ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- امنیت د سولې په شتون کې منځته راځي. په کومه ټولنه کې چې سوله ټینگه وي خلك یې په خپلوکې په خوښۍ ژوند کوي او هلته امنیت هم غښتلی وي. نو سوله او امنیت یو له بل سره ملگري دي.

۲-سوله د ټولنې آرام چاپیریال دی چې په هغې کې مصئونیت، عدالت او آز ادي د ټولنې د خلکو د مرستو د لارې ټینگیږي.

۳-مصئونیت د امن د لرلو په معنا دی.

## اضافي معلومات

**سوله او امنیت، مصؤنیت منځته راوړي**

په هرځای کې چې امنیت ټینگ شي، مصئونیت پیاوړی کیږي، مصئونیت د تل لپاره په امنیت پورې تړلی دی، امنیت د سولې زیږنده ده، که چېرته د امنیت بنسټونه ړنگ شي مصئونیت دگډوډۍ تر گواښ لاندې راځي. د خلکو ترمنځ سوله کول الهي آمر دی، لکه څنگه چې الله(ج) د انفال سورت په (۱) آیت کې فرمایلي دي:

(... قاتقوا الله و اصلحوا ذات بینکم ص واطیعوا الله ورسوله ان کنتم مؤمنین)

ژباړه: ....... نو تاسې له الله (ج) څخه ووېریږئ او په خپلو منځونو کې سوله وکړئ، د الله (ج) او د هغه د رسول (ص) حکم ومنئ، که تاسې (په حقه سره) مومنان یئ.

رسول(ص) د سوله کوونکي د اجر او فضلیت په اړه داسې فرمایلي دي:

(عن ابی هریره رضه، قال: سمعت رسول الله (ص) یقول: من اصلح بین اثنین استوجب له ثواب شهید)

ژباړه: له ابی هریره رضه څخه روایت دی چې ویلي یې دي: ما له رسول الله(ص) څخه اوریدلي دي چې ویل یې: څوک چې د دوو خواوو یا دوه ډلو یاددوو حکومتونو ترمنځ سوله (روغه جوړه) کوي هغه د یوه شهید ثواب ترلاسه کوي.

د اسلام په ټولنیز نظام کې د خلکو ترمنځ روغه جوړه کول لوی مقام او درجه لري، تر دې چې رسول الله(ص) سوله کول د ټولې ورځې د نفلي روژې نیولو او ټوله شپه له نفلي عبادت څخه غوره او ښه گڼلې ده

## (شلم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | عامه ملکیت |
| عمومي موخه | زده کوونکی دې دعامه ملکیت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکیدې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>• عامه ملکیت به وپېژني.<br>• د عامه ملکیت مفهوم به بیان کړای شي.<br>• د عامه ملکیت د موضوع په پوهیدلو سره به په زده کوونکو کې د عامه ملکیت د ساتنې روحیه پیاوړې شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په فکر، عامه ملکیتونه کومو شیانو ته ویل کیږي؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د عامه ملکیت په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- عامه ملکیتونه له: ځمکو، غرونو، دښتو، ځنګلونو، دولتي فارمونو، پارکونو، سړکونو، کانونو، او طبیعي زېرمو، فابریکو، د لرغونو آثارو او داسې نورو څخه عبارت دي.

۲-لرغوني آثار د هر ملت د فرهنګي شتمنیو، ملي ویاړونو او د نیکونو د فرهنګي میراثونو څخه عبارت دي.

## اضافي معلومات

### عامه ملکیت

عامه ملکیت هغه مال او شتمنی ده چې په ټولو خلکو پورې اړه لري، نه په یوه فرد یا افرادو پورې. په دې تعریف کې چې ملکیت بیان شو، یوې خواته مال دی او بلې لوری ته مالك دی، دغه دواړه خواوې په خپلو کې ځانګړې اړیکې او پیوند لري، خو هغه څوك چې مال په هغه پورې اړه پیدا کوي یو ځانګړی شخص یا اشخاص نه دي. دغه ډول ملکیتونه ځانته بېلابېل ډولونه لري:

۱-د دولت ملکیت.۲-دعامو خلکو ملکیت.۳- د نورو عاموملکیت.

ویلی شو:(لکه څنګه چې ځیني څېړونکي وایي): هغه څه چې د عامه ملکیت په نامه یادشي، لکه هغه ځمکې چې آن دولت هم نه شي کولی هغه وپلوري او یا یې چاته ورکړی، دغه مالونه په حقیقت کې د چا مال نه دی، بلکې ټول خلك یې کارولی شي.

پوهنتونونه، جوماتونه او داسې نور مالونه همدې ته ورته دي. په ځینو کتابونو کې عامه مباحات(هغه مالونه چې مالك یې معلوم نه دی) لکه: د سیند اوبه، طبیعي شتمنی، واښه او داسې نور د عمومي ملکیتونو په ډولونو کې حسابېږي،په دې ډول عامه مباحات د چا مال نه دی، بلکې هر څوك له هغې څخه ګټه اخېستلی شي، لکه څنګه چې اشاره ورته وشوه، وایو چې دا ډول ملکیتونه عمومي اړخونه لري او ټول خلك کولی شي له هغو څخه ګټه واخلي.

## (یوویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | رسانه ییز اخلاق |
| عمومي موخه | زده کوونکی دې د رسانه ییزو اخلاقوپه معنا او مفهوم پوه شي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کونکوي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.**<br>• له رسانه ییزو اخلاقو سره به بلد شي.<br>• هغه موضوعات چې باید په رسانه ییزو اخلاقو کې په پام کې ونیول شي، بیان کړای شي.<br>• له رسنو څخه د ښې ګټې اخیستنې روحیه به په کې رامنځ ته شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په آند، رسانه ییز اخلاق څه اهمیت لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د رسانه ییزو اخلاقو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- ورځپاڼه، مجله، راډيو، تلويزيون، انټرنيټ، کيبلي شبکه او داسې نور رسنۍ دي.

۲-صداقت، روغتيا، توازن، امانت او د ملي ګټو سره له ټکر څخه ساتنه رسانه ييز اخلاق بلل کيږي.

۳-رسنۍ بايد هغه معلومات چې د اسلام د سپيڅلي دين سره ټکر ولري، د خلکو د بې حرمتۍ، سپکوالي او توهين لامل ګرځي خپاره نه کړي همدارنګه له هغو برنامو څخه چې د ټولنې د خلکو اخلاقي سلامتيا ته زيان رسوي ځان وساتي.

## اضافي معلومات

**رسانه ييز اخلاق**

هغه څه چې د اړيکو جوړولو او منځته راتلو لپاره له هرشي څخه مهم او اړين دي هغه د رسنيو له خوا د مخاطبينو د باور او اعتماد جلبول دي.

که چېرته د اطلاعاتو او خپرونو وړاندې کولو سازمانونه او يا د سيل او تفريح سازمانونه چې خپل باور له لاسه ورکړي او يا ونه شي کولی چې د عامو خلکو اعتماد او ملاتړ لاس ته راوړي په راتلونکي کې به دهغوی د پايښت بهير له ستونزو سره مخ شي.

د اعتماد او باور کولو پرته، نورې مسلې هم شته چې په رسنيو کې اخلاقو ته او يا په ځانګړې توګه رسانه ييزواخلاقو ته اهميت ورکوي. آن تردې که د رسنيو قوانين په کافي اندازه روښانه هم وي، بياهم د رسنيو له خوا د ځينو اخلاقي اصولو رعايت کول اړين دي، نه حقوق کولی شي چې د اخلاقو ځای ونيسي او نه اخلاق کولی شي چې د حقوقو ځای ونيسي. دا دواړه يو د بل پوره کوونکي دي. حقوقي نظام معمولاً د جرم د پېښدلو څخه وروسته مداخله کوي او له هغې څخه مخکې د اخطار ورکوونکي رول لري، خو اخلاق د يو ارادي او ځاني پوهي (خودآګاه) د ځواك په توګه د خلکو په منځ کې فعاليت کوي.

## (دوه ویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | انساني کرامت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې پوه شي چې انسانان کوم کرامتونه لري؟ |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>• انساني کرامت به و پيژني<br>• انساني کرامتونه به بيان کړای شي.<br>• د انساني کرامت ارزښت ته به غاړه کيږدي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په فکر، انساني کرامت څه شي دی؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د انساني کرامت په اړه بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- څرنگه چې انسان د عزت خښتن دی او حق لري چې په ټولنه کې په درناوي سره ژوند وکړي او هیڅوک داحق نه لري چې په وینا او عمل سره د هغه حیثیت تر پښو لاندې کړي ، ټول انسانان د درناوی وړدي.

۲–حکومت دنده لري چې د انسان حقونه او کرامت په پام کې ونیسي او دهغې ساتنه وکړی ، لکه څرنگه چې د هیواد د اساسي قانون په یوه ماده کې د انساني کرامت یادونه شوې ده.

۳–ټول انسانان د کرامت خاوندان دي ، نوله دې کبله موږ باید یو دبل د خبرو او نظریاتو درناوی وکړو او یوله بل سره متقابل درناوی په پام کې ونیسو.

## اضافي معلومات

### د انساني کرامت مفهوم

کرامت په لغت کې بېلا بېلې معناوې لری ، مهم یې : ارزښت ، حرمت، حیثیت، مشری، عزت، شرافت، انسانیت، شان، مقام، موقعیت، درجه، مرتبه، له هرډول بدو چارو او بدو خویونو څخه ځان پاک ساتل ، احسان، ښښه، ځوانمردي، او ورکړه دي. په انگلیسي کې «انساني کرامت» ته (Haman digniTy) وایي چې د شرف ، ویاړ د درناوي حق ، نوم، رتبه، مقام، ځانگړتیا، او په شرافت سره یاده شوې ده. د کرامت (Dignitu) کلمه د لاتینی ژبې څخه اخستل شې ده چې د شرافت ، حیثیت، ویاړ او د درناوی حق په معنا دی. د انساني کرامت په لغوی معناکې په غور سره وینو چې په انساني موجود کې کرامت د دوو بیلا بېلو ځانگړنو چې یو له بل سره په بشپړه توگه توپیر لري بیانوونکی دی. ددې ځانگړتیا ووڅخه ځینې یې ، دخلکو درجه ، رتبه او موقعیت راښیي . یاپه بل عبارت سره د خلکو ټولنیز، سیاسی ،دیني او کورنی مقام بیانوي ، لکه د شاه او شاهزاده کرامت او د مؤمن کرامت. دا رنگه کرامتونه یعنې اکتسابی یا ارزشي کرامات ، د اکتساب اوسلب وړدي، کیدلی شي چې زیاتوالی یا کموالی پیدا کړي خو ددی ځانگړتیاوو ځینې یې، لکه انسانیت دی چې انساني اصل دی چې د انسان څخه نه سلب کیدلی شي او نه بدلیدلی (وضع کیدلی) شي، دغه ډول کرامت چې په اصطلاح کې ورته (ذاتي کرامت) ویل کیږي، چې په هیڅ درجې یا رتبې پورې تړلی نه دی.

## (در ویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | دقانون رعایت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې پوه شي چې څرنګه د قانون رعایت وکړی |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.**<br>• دقانون د رعایت کولو سره به بلد شي.<br>• په ښوو نځې کې به خپلې دندې او دښوونکو دندې بیان کړای شي.<br>• په خپل ژوند او ټولنه کې به نظم او قوانین مراعات کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په فکر، د قانون رعایتول څه ګټې لري؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د قانون د رعایتولو په اړه سره خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵<br>دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د مهال ویش سره سم د ښوونکي لوست ورکول ، ددندو دلایحې سره سم د مدیر او سرمعلم له خوا ددندو ترسره کول ، دساعت له پیله په ښوونځي کې د زده کوونکو شتون ، د لوست په وخت کې ښوونکي ته دزده کوونکو پام گرځول، د ښوونکي له اجازې پرته له ټولگي څخه د زده کوونکو نه وتل او داسې نور د ښوونځي قوانین گڼل کیږي.

۲-که په ټولنه کې قانون عملي نه شي ټولنه د گډوډۍ خواته درمي، ناامني، غلا او داړه ماري ، وژنې ، انسان تښتونه او داسې نور منځته راځي.

۳-د قانون اهمیت په دې کې دی چې زموږ ساتنه او مرسته را سره کوي.

**اضافي معلومات**

## د قانون رعایت

هرڅومره چې په یوه ټولنه کې دقانون په اړه د خلکو معلومات زیات وي ، په حقیقت کې د هغې قانون قبلول هم دخلکو له خوا زیات وي. که څه هم په ځینو و ختونو کې له ژورې خبرتیا سره سره ، بیا هم د ځینو و گړو له خوا د قانون نه پلي کول وینو، په حقیقت کې له خلکو سره دا قانون دمسؤولینو مشخصې اړیکې بنسټیز رول لري . مسؤولین باید خپلې اړیکې تردې کچې ښاریانو ته نږدې کړي ترڅو هغوی پوه شي چې دا قوانین د زیاترو خلکو له خوا عملي کیږي، دا د هغوی لپاره پرقانون د عمل کولو مهمه انگیزه کېدلی شي. هغوی دې ټول ښاریان د قوانینو د عملي کولو پر گټو خبر کړي. په دې ډول سره ټولنه دا خپله دنده گڼي چې قوانین په هر ډول حالاتو کې عملي کړي.

که پدې ترڅ کې د قانون د وضع کیدلو څخه د هغې ترعملی کولو هر ډول چل او درواغ د قانون په وړاندې ترسره او څرگند شي نوبیا له خلکو څخه پرقوانینو د عمل کولو لپاره هیڅ هیله او امید نه شي کېدلي. د خلکو له خوا دقانون په عملي کولوکې بندي کول ، جریمه کول او دټولنیز پت ساتل ، د ادرې مهم لاملونه دي چې خلک ددې له ویرې دقانون رعایت کوي.همدارنگه د قانون له وضع کیدلو او گټو څخه د ځوانانو او خلکو ناخبري له هغې څخه د سر غړونې لامل گرځي، غوره ده چې د ټولنیز پت او عزت د ساتنې پر لاملونو ډیره تکیه وشي چې د هغې دساتلو لپاره د قوانینو درناوی وشي او دهغې د عمل لپاره کوښښ وشي . په هره ټولنه کې باید د هغې ټولنې د نظرونو او ټولنیزو معیارونو سره سم قوانین جوړ شي. په دې اساس د قوانینو په جوړولوکې گډون او ښاریانو ته دهغې خبررسول هغه لاملونه دي چې تل د قوانینو دزیات رعایت او عملي کولو لامل کرځي. ددې لپاره چې موږ ټول په یوه کورنی، کلي یا ښارکې په ښه توگه او په ارامی سره یو دبل ترڅنګ ژوندوکړو او خپلې بیلا بیلې اړتیاوې په مناسبه توگه ترلاسه کړو، یونظم ته اړتیالرو. انسانان د قوانینو او مقرراتو پرته نه شي کولی چې د ډیرې مودې لپاره یو دبل په څنگ کې ژوند وکړي.

## (څلورويشتم) لوست

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | دماشومانو حقونه |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ماشومانو د حقونو درعايتونو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي<br>• د ماشومانو د رعايت کولو سره به بلد شي.<br>• د ماشومانو حقونه به بيان کړای شي.<br>• د خپلو او نورو ماشومانو د حقونو په رعايت کولو سره به مينه پيدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند، څرنګه کولې شو چې روغ ماشومان ټولنې ته وړاندې کړو؟<br>- د نوي لوست سرليك پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د ماشومانو د حقونو په اړ دې په خپلو کې خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليك ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵<br>دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- مور او پلار په لومړي قدم کې له ناروغیو او خطرونو څخه د خپلو ماشومانو د ژوغورنې دنده پر غاړه لري.

۲-ماشومان د ښوونې او روزنې ، مینې کولو، تفریح، د څارنې او ساتنې حقونه او داسې نور لري.

۳-الله ج د قرانکریم د کهف سورت په ۴۶ آیت کې فرمایلي دي چې: ژباړه «مال او اولاد ددنیوي ژوند ښایست اوښکلا ده»

## اضافي معلومات

**د ماشومانو د حقونو تړون (کنوانسیون)**

د ماشوم د حقونو تړون، یوه سریزه او ۵۴ مادې لري چې په هغې کې ۴۱ مادې د ماشوم د حقونو دي او ۱۳ مادې یې په هر هېواد کې د اجراء کولو د څوانګوالي په اړه دي. دې تړون په عمومي ډول د ماشومانو لپاره څلور اصلي مطلبو نه په پام کې نیولي دي چې د: بقاء، حیات، رشد او حمایت څخه عبارت دي. ددغه کنوانسیون د تعریف له مخې «ماشوم هغه څوک دی چې د ۱۸ کلنۍ عمر یې پوره کړی نه دی او دخپل عمر د جسمي، رواني، روغتیایي(د سالمې ودې او په دې برخه کې له ټولو اسانتیاوو څخه ګټه اخېستل)،د ښوونې او روزنې حقونه ، د ماشوم د حقونو ساتنه ، د ماشوم په وړاندې د تاوتریخوالي مخه نیول ، د معلوماتو د لاس ته راوړلو حق په هغو مسایلو کې چې د ماشوم په اړه یې تصمیم نیول کیږي، د ماشوم د پنا اخېستلو حق، د رواني اختلالاتو او عقلي او جسمي معلولیتونو څخه د ژغورنې حق».

همدارنګه په دې کنوانسیون کې داسې راغلي دي چې:« ټول هغه حقونه چې ماشوم یې لري، د هغې مسؤولیت پر مشرانو دی چې د ماشوم د حقونو دپوره کولو یاد ماشوم د حقونو په لاس ته راوړلو کې قانوني مکلفیت لري، باید چې خپل مکلفیت که هغه مور او پلار وي یاولي وي او یا یو دولت وي ترسره یې کړي، وړاندوینه شوې ده»

کله چې د ماشوم قانوني مسؤول د ماشوم په اړه د پورتنیو اړتیاوو په پوره کولوکې سستي وکړي او یاد هغو په وړاندې خنډشي، د ماشوم دودې مخه نیول کیږي، دزیاترو هېوادونو په قوانینوکې د ماشومانو د حقونو د ساتنې موسیسې خپله مداخله ضروري او غوره ګڼي. موږ په بېلا بېلو هیوادونو ، په ځانګړي توګه اروپايي هیواونوکې وینو چې کله د والدینو په خوښه یا دهغوی د ناتوانی له کبله د ماشومانو په سالمه ښوونه او روزنه او یاد هغوي په مصؤن جسمي او رواني حق کې خلل را منځته شي د محکمې د حکم له مخې ماشوم له کور څخه باسي او د مور او پلار واک سلبیږي، آن تردې چې ماشوم د یوه ټاکلي وخت لپاره یو مصؤن ځای ته وړي.

## (پنځه ویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د ښځې حقونه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ښځې د حقونو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکی دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي<br>• دښځې حقونو سره به بلدشي.<br>• دښځې حقونه به بیان کړای شي.<br>• دښځې حقونه به وپېژني او هغې ته به په ارزښت قایل شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په آند، ښځه کوم حقونه لري؟<br>- د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ښځو حقونو په اړه په خپلو کې خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیك ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵<br>دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- پیغمیر (ص) د ښځو د حقونو په اړه فرمايلي دي چې: دخپلو ښځو سره ښه چلند کوئ، پرهغوی ظلم مه کوئ ځکه چې هغوی هم دنارینه و په څیر د الله (ج) بنده ګانې دي ، دخپل رب پروړاندې یو ډول مسؤلیتونه لري او د قانون پروړاندې هم مساوي دي

۲-د ښځو حقونه : زده کړه ، واده، نفقه، کار، میراث، اراده، د دوای حق او داسې نوردي.

۳-پیغمبر(ص) د ښځو د زده کړې په اړه فرمايلي دي چې: دعلم زده کره پرهر مسلمان (نارينه او ښځينه) فرض ده.

## اضافي معلومات

### دښځو حقونه

ښځو او نارینه و هریوه د تاریخ په اوږدوکې خپل خپل کارونه ترسره کول، ښځې به په عمومې ډول د کور دننه په کارونو او د اولاد په روزنه کې بوختې وې او نارينه به له کوره بیرون د خوراکي توکو په پیدا کولو بوخت و، ځينې خلک فکر کوي چې له لويو او مهمو کارونو څخه د ښځو د محروميت لامل دادی چې د ښځو فکري او فزيکي ځواک کم دی او کوم کارونه چې په عنعنوي توګه ښځو ته ورکړشوي دي د دوی لپاره مناسب او غوره دي. حقيقت دادی چې ښځې او نارينه د ژوند په لحاظ په خپل جوړښت کې لږ تو پیرونه لري او دغه توپیرونه ددې لامل نه شي کېدای چې ښځې د پرمختګ او ترقۍ له ټولو کارونو څخه محرومې کړو. د اسلام روښانه دين ښځې هم د نارنيه و په څير انسانان ګڼي. اسلام د ښځې او نارينه ترمنځ توپير په رسميت پيژني خود نارينه او ښځې ترمنځ بي عدالتي نه مني.پخوا به ښځې او نارينه د عرف او ټولنيزو دودونو تابع وو ، اوس هم زموږ د هېواد په ډېرو سيموکې د ښځو په وړاندې تاو تريخوالی دوام لري او هغه حقونه چې اسلام ښځو ته ورکړی دي هغه نه ورکول کيږي،ښځې د کورنۍ ، ټولنې او دنړۍ د پرمختګ کلي ده. ددوی پرمختګ د عمومی پرمختګ ضامن دی . لکه څنګه چې ليدل کيږی په افغانستان کې زياتره ښځې بېسواده دي او د پرمختګ له پروسې څخه لرې دي. څرګنده ده چې ددې بېسواده اکثريت بطې حرکت د پراختيا او پرمختګ په لاره کې د ملي کاروان د حرکت سرعت کموي. نن ورځ ذ ښوونې او روز نې د پرمختګ ، د اړيکو پراختيا او د رسنيو له کبله حالاتو ډېر توپير کړی دی . نن ورځ هرڅوک پوهيږي چې ښځې کولی شي د نارنيه و پر څير لوړې زده کړې او مهمې دندې ولري او دظرفيتونو د لوړتيا او د ټولنيز مقام دلاس ته راوړلو لپاره د عقلي ځواک او توان څخه برخه منې دي. له دې امله هغوی غواړي چې د توپير راوړونکي حالت څخه ځانونه و باسي ، له دې امله له ټولو مخکې بايد د ښځو پرمختګ ته چې دنسلونو بنسټ جوړ وونکې او د پرمختګ لپاره لارې چارې برابروي کلکه پاملرنه وشي.

## (شپږویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د ۱۳۵۲ لمریز کال څخه د ۱۳۷۱ هجری لمریز پورې د افغانستان پیښو ته یوه کتنه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د هېواد د ۱۳۵۲ څخهتر ۱۳۷۱ پېښو سره بلد شي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندي موخو ته ورسیږي:<br>• د دې دوري بېلابېل رژیمونه به وپیژني.<br>• په دې دوره کې بهد سیاسي واک د لېږد په اړه معلومات وړاندې کړای شي.<br>• د هیواد د تیرمهال د پېښو د مطالعې او خبرتیا سره به مینه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، د افغانستان لومړني ولسمشر څوک و؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې په کتاب کې ورکړ شوي فعالیت پوره کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- په ۱۳۵۸ لمریز کال د سلواغې په شپږمه.

۲- د حفيظ الله امین حکومت د پخواني شوروي اتحاد په مستقيم يرغل سره له منځه لاړ.

۳- ځکه د سردار محمد داود خان له پوځي کودتاه مخکې، په هيواد کي شاهي نظام حاکم و. د سردار محمد داود خان د پوځي کودتا وروسته، شاهي نظام په جمهوري تبديل شو؛ ځکه ظاهرشاه ته د افغاستان وروستنی پاچا ويل کيږي.

**اضافي معلومات**

سردار محمد داود خان د ۱۳۵۲هـ. ل کال د چنګاښ په ۲۶ په يوه پوځي کودتاه کې د افغانستان له مخکني پاچا محمد ظاهرشاه څخه واک ترلاسه کړاو نظام يې له شاهي څخه په جمهوري بدل کړ. سردار محمد داود خان په هيواد کي د جمهوري نظام بنسټ ايښودونکی ګڼل کيږي.

سردار محمد داود خان د صدراعظمی مقام له تړاکل کيدو مخکې په نظامي او امنيتي بيلابېلوبرخوکې کارکړی دی، هغې د محمد ظاهرخان د پاچاهی په وخت کې په ۱۳۳۲هـ.ل کال د صدراعظم مقام ترلاسه کړ او د لس کلونو لپاره د هيواد صداعظم و.

سردار محمد داودخان د صدارت په وخت کي دوه مهم عمراني او انکشافي پنځه کلن پلانونه له ځان سره ونيول. لومړنی پنځه کلن پلان د بهرني هيوادنو د مرستې نه کولو او د کورني پانګه اچونکو د ساړه هرکلي له امله کوم بری نه درلود. خو دويم پنځه کلن پلان د هيواد د زيربناوو په انکشاف کې ډيره ښه نتيجه درلوده، چې د هغې له کبله په هيواد کې څو لويې لارې، د بريښنا بندونه، توليدي فابريکې د همدې برنامو په نتيجه کې جوړې شوې.

په ۱۳۵۷ لمريز کال د غويي په ۷ يوه بله پوځي کودتاه، د خلق او پرچم د اتحاد لخوا د سردار محمد داود خان د نظام په مقابل کې ترسره شوه، د هغې په پايله کې د داودخان نظام ړنګ شو. او کمونيستي رژيم دافغانستان د خلق دموکراتيک جمهوريت،په نوم منځته راغی.

## (اوه ويشتم) لوست

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د ۱۳۷۱ لمریز کال څخه تر ۱۳۸۰ لمریز کال پورې د افغانستان پيښو ته لنډه کتنه.** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ۱۳۷۱ څخه تر ۱۳۸۰ لمریز کال پورې د افغانستان د پيښو سره بلد |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د دې مهال رژيمونه به وپيژني.<br>• د دې دورې د سياسي واک د انتقال په اړه به معلومات ورکړای شي.<br>• د هېواد د بدلونونو او پېښو د تاريخ له مطالعې سره به يې مينه پيدا شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، د پخواني شوروي اتحاد سور لښکر زموږ له هېواد څخه په کوم ډول ووته؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د لوست فعاليتونه پوره کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د نور محمد ترکي په مشرۍ (د افغانستان د خلق دموکراتیک جمهوریت) په رامنځته کېدلو سره چې پخواني شوروي اتحاد یې مرسته او ملاتړ کاوه،د افغانستان مسلمانو خلکو په ګډه سره د خپلو دیني او ملي ارزښتونو د ساتنې په موخه د حاکم رژیم په وړاندې خپل جهاد او مقاومت پیل کړ.

۲- په ۱۳۷۱ لمریز کال د سرطان میاشت کې.

۳- په ۱۳۷۵ لمریز کال د تلې په میاشت کې، طالبانو د کابل ښار ونیو...

**اضافي معلومات**

په ۱۳۵۸ لمریز کال د سلواغې په شپږمه د پخواني شوروي اتحاد سور لښکر د لیونید برژنف په حکم د افغانستان د موجوده حکومت د حمایت لپاره، افغانستان ته راننوت او افغانستان یې په رسمي ډول اشغال کړ.

د سره فوځ په واسطه د افغانستان فوځي اشغال، د کمونستي رژیم او د شوروي لښکرو په وړاندې د ولسې خلکو د پراخه مقاومت لامل شو.

په افغانستان کې د پخواني شوروي اتحاد پوځي حضور د نړۍ هیوادونو، ملګرو ملتونو،د اسلامي هېوادونو دکنفرانس سازمان او غربي هیوادونو محکوم کړ.

مجاهدین چې د هېواد له بیلابېلو قومونو څخه جوړ شوي وو، په پوره زړوتیا او یووالي سره د بهرني ښکېلاک په وړاندې ودریدل او مقاومت ته یې دوام ورکړ.

دیني عالمانو او روحانیونو خلك جهاد ته چې د مسلمانانو یوه دیني فریضه ده رابلل. د وخت په تېریدلو سره مجاهدینو جهادي ډلې او تنظیمونه جوړ کړل چې د سرو لښکرو سره په جګړو کې یې ډېر رول درلوده.

## (اته ویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **په هیواد کې د وروستیو دریو لسیزو د پېښو او بدلونونو پایلې** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ورستیو دریو لسیزو د پېښو او بدلونونو د پایلو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:**<br>• په هیواد کې به د وروستیو دریو لسیزو د پېښو او بدلونونو په پایلو پوه شي.<br>• په هېواد کې به د دې دورې تاوانونه او پایلې لست کړای شي.<br>• له جګړې څخه کرکه او د سوله یز ژوند ښېګنې به په زده کوونکو کې پیاوړې |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په فکر: کوم لاملونه، په هېواد کې جګړې او ویجاړې لامل شول؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د جګړې د زیانونو او د سولې د ګټو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- زموږ هیواد له ۱۳۵۲ څخه تر ۱۳۸۰ لمریز کال پورې د سیاسي بدلونونو شاهد او د بېلابېلو رژیمونو تجربې لیدلې دي. په دی کلونو کې زموږ گران هیواد ډېر مالي او ځاني تاوانونه لیدلي دي، د بشپړ ځواب ترلاس کولو لپاره دې د لوست متن ته مراجعه وشي.

۲- د کمونیستي نظام پرځول ، د اسلامي حکومت جوړول او د پخواني شوروي اتحاد د سره پوځ وتل چې د مجاهدینو اصلي غوښتنه وه او ددي موخي لپاره یې کلونه مبارزې وکړې ترڅو، په ۱۳۷۱ لمریز کال د غوبیي په اتمه د دوي غوښتنه عملي شوه او په کابل کې د اسلامي حکومت پرجوړولو بریالي شول. له بده مرغه د ځینو مجاهدینو د مشرانو د ځان غوښتنې او د بهرنیو هېوادونو لاس وهنې د کورنۍ جگړې لامل شوې چې په هېواد کې تنظیمي جگړو په کلونو دوام وکړ.

۳- افغانان دې په گډه سره ملي یووالي ته قوت ورکړي، د علم او پوهې په لاس ته راوړلو دې د جگړو ورانۍ ورغوي، افغانستان دې آباد او په یوه پرمختللي هیواد بدل کړي.

**اضافي معلومات**

د وروستیو دریو لسیزو جگړو بهیر په هېواد کې لاندې بدې پایلې درلودلې:

- له یو میلیون څخه ډېرو افغانانو خپل ځانونه له لاسه ورکړل.

- له ۵ تر ۷ میلیونونو افغانانو (د هیواد یو په دریم نفوس) گاونډیو او بهرنیو هیوادونو ته په کډه او مهاجر شول.

- برسیره له مړوشوو خواوشا یونیم میلیون نور افغانان: مجاهدین، حکومتي سربازان او ولسي خلك په کې د جگړې په واسطه معلول شول.

خواوشا درې میلیون افغانان زخمي شول.

له نیمايي زیاته د افغانستان کرنیزه ځمکه، د اوبو پروژې او بنسټونه په قصدي ورانکاریو او یا په بمباریو کې له منځه لاړل.

- له ۱۰ تر ۱۵، میلیونه ماینونه د پخواني شوروي اتحاد د قواو او د افغانستان د هغې وخت د عسکرو لخوا په ځمکه کې ښخ شول چې ترننه د افغانستان د خلکو لپاره یو لوی گواښ گڼل کېږي.

- د اقتصاد او تولید څرخ په هیواد کې ودریده.

- ټولنیز نظم گډوډ شو او ټولنیز زیانونه یې رامنځته کړل.

# (نه ویشتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
| --- | --- |
| د لوست موضوع | **د بن غونډه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د بن د غونډې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:**<br>• په دې به پوه شي چې د بن غونډه د کوم مقصد لپاره جوړه شوه.<br>• پرهغه موضوګانې به چې د بن پر غونډه کې پرې موافقه شوې وه بيان کړای شي.<br>• د سياسي او ټولنيزو ستونزو د حل لپاره به د غونډو د جوړولو او خبرو کولو پر آهميت قانع شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
| --- | --- | --- |
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، ولې د بن غونډه منځته راغله؟<br>- د نوي لوست سرليك پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د بن د غونډې په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د بن غونډه د جگړې ختمولو، ملي روغې جوړې، د تل پاتې سولې، د بشر د حقونو رعایت کولو او په افغانستان کې د یو ملي حکومت د جوړېدلو په موخه د ۱۳۸۰ لمریز کال د لیندۍ په میاشت کې د مختلفو افغاني گوندونو او تنظیمونو په واسطه د آلمان هیواد د بن په ښارکې جوړه شوه.

۲- د بن په غونډه کې د افغانستان بېلابېلو سیاسي ډلو او گوندونو گډون کړی وو.

۳- د بن په غونډه کې  د سولې او امن راوستلو لپاره لنډ مهاله ادارهٔ د شپږو میاشتو او انتقالي ادارهٔ د یونیم کال لپاره منل شوې وه.

**اضافي معلومات**

په ۲۰۰۱ زیږدیز کال د ډسمبر په دیارلسمه نېټه گډون کوونکو د بن په غونډه کې د نهو ورځو وروسته یو دوه مرحلیز تفاهملیک لاس لیک کړ چې وروسته له دیرشو کلونو د یوې نوې ادارې د بنسټ ډبره کېښودل شوه.

د دې توافق لیک پراساس، د افغانستان په مسایلو کې د خپلو مهمو ډلو او څېرو د یو لنډ مهالي شپږمیاشتني حکومت په جوړولو پریکړه وکړه او دایې غوره وگڼله چې د کلونو گډوډیو وروسته په افغانستان کې د سولې او امنیت د ټینگښت لپاره نړیوال سوله ساتي ځواکونه ځاي پرځاي شي. په دې غونډه کې بېلابېلو گډون کوونکو، شمالي ټلوالې، نورو جهادي ډلو او همدارنگه د محمد ظاهرشاه استازي هم دا توفق لیک لاس لیک کړ.

د بن پرېکړه وتوانېد له چې په تېرو دریو لسیزو کې د افغانستان یوه کړکېچنه مسله چې د سیاسي واک ویش و پای ته ورسوله او په افغانستان کې پخواني جهادي څېرې حامد کرزي د لنډمهالې ادارې د مشر په ټاکلو سره یو نوی پړاو پیل شو.

## (دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **لنډ مهاله اداره** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د لنډمهالې ادارې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:**<br>• پوه به شي چې لنډمهال اداره په هیواد کې د کومو پرېکړو په اساس جوړه شوه.<br>• د لنډمهالې ادارې په وخت کې چې کوم کارونه او اسانتیاوې منځته راغلي دي د هغو نومونه به لست کړای شي.<br>• دولسي حکومت د بنسټونو د ټینگښت په موخه دې د لنډ مهالې ادارې کارنامو ته اهمیت ورکړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، لنډ مهال اداره کوم وخت جوړه شوه؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې لنډ مهالې ادارې په څرنگوالي خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- لنډمهالې اداري په (۱۳۸۰) لمريز کال د سلواغې په لومړۍ نېټه د حامد کرزي په مشرۍ په رسمي ډول خپل کار پيل کړ.

۲- حامد کرزی د لنډمهال حکومت مشر، د افغانستان د اسلامي دولت د رئيس استاد برهان الدين رباني څخه په رسمي توگه واک ترلاسه کړ.

۳- په دې دوره کې د ښوونځيو، مدرسو او پوهنتونونو، دروازې د انجونو او هلکانو پرمخ خلاصې شوې او ښځو ته په دولتي ادارو کې د کار او د زده کړوحق ورکړشو. د اساسي قانون د ۱۳۴۳ هـ.ش د بن د پريکړو لاس ليک په اساس د اجرا وړ وگرځيد.

**اضافي معلومات**

د لنډمهال اداري جوړښت او تشکيل د افغانستان د سياسي رهبرۍ او په دې هيواد کې د سولې او دموکراسی پرلور د قدم اخېستلو لپاره يوه د لومړنيو او مهمو موضوعگانو څخه وه چې د بن د غونډې د گډون کوونکو لخوا په پام کې نيول شوې وه. د بن د پريکړه ليک د عمومي احکامو په اړوند د لومړنۍ مادې په لومړي بندکې، د مؤقت واک تاسيس د پام وړ وگرځيد. گډون کوونکو په دې تعهد ليک کې روښانه کړې وه چې يوه لنډ مهاله اداره په رسمي ډول په ۱۳۸۰ لمريز کال د سلواغې په لومړۍ نيټه جوړه شي.

د حامد کرزي په مشرۍ د لنډ مهالې اداري په جوړيدو، د افغانستان بيلابيلو سياسي گوندونو چې د کلونو جگړو څخه يې د خلکو ستړيا حس کړې وه د دې اداري د جوړيدلو هرکلی وکړ.

استاد برهان الدين رباني د افغانستان د مجاهدينو د دولت مشر چې استازو يې د بن غونډه کې گډون کړی و او د بن په پرېکړه ليک کې يې لاسليک کړی وو د ۱۳۸۰ ل کال د مرغومې په لومړۍ نيټه چې د ۲۰۰۱ ميلادي د ډسمبر له ۲۲ سره برابره وه، په رسمي ډول يې لنډ مهالې اداري ته واک وسپاره.

په افغانستان کي له استاذ برهان الدين رباني څخه حامد کرزي ته د واک سپارل په خپل ذات کې يو بې ساری عمل و، ځکه دا لومړی ځل و چې د افغانستان په تاريخ کې واک په لويه کچه پرته له وينو تويولو، کودتا، او شورش څخه په سوله يزه توگه له يوې مرجع څخه بلې مرجع ته سپارل کېده.

لنډ مهالي اداري د دې ترڅنگ چې په هيواد کې د واک د متمرکز کولو مسؤوليت پرغاړه درلوده، د بن د پريکړه ليک پربنسټ دنده لرله چې نور مسؤوليتونه، لکه د ټولنيزو او سياسي حالاتو درغولو په برخه کې هم سرته ورسوي.

## (یو دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **بیړنۍ لویه جرگه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د بیړنۍ لویې جرگې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• پوه به شي چې بیړنۍ لویه جرگه د کومې موخې لپاره جوړه شوه.<br>• د بیړنۍ لویې جرگې پریکړه لیکونه به فهرست کړای شي.<br>• د هېواد د پخوانیو دودونو په ترڅ کې دې د جرگو د رول آهمیت ته په ارزښت قایل شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، بیړنۍ لویه جرگه څرنگه منځته راغله؟<br>- د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د بیړنۍ لویې جرگې په اړه خبرې وکړئ.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیك ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- له ټول هېواد څخه په بېړنی لویه جرگه کې د گډون کوونکو استازو شمېر ۱۵۰۰ کسه وو.
۲- بیړنی لویه جرگه د کابل پولتخنیک پوهنتون د لویې جرگې په خېمه کې پرانستل شوه.
۳- چې لنډ مهالې اداره خپل ځای د افغانستان انتقالي دولت ته پرېږدي. حامد کرزی د ۱۸ میاشتو لپاره د اسلامي انتقالي دولت د مشر په توگه وټاکل شو. داسې پرېکړه وشوه چې په دې موده کې د هېواد اساسي قانون د لويې جرگې لخوا تصويب شي او حکومت ته دنده ورکړشوه چې د هېواد د بیا رغونې لپاره ځانگړي پروگرامونه ترتیب او د هغو په پلي کولو کې گامونه واخلي.

**اضافي معلومات**

د انتقالي اداري د جوړښت لپاره د ۲۰۰۱ م د بن د کنفرانس لویه لاس ته راوړنه وه. د انتقالي دولت د جوړولو لپاره د بیړنۍ لويي جرگې جوړول او د دې جرگې لپاره د کمېسیون جوړول د بن په کنفرانس کې د گډون کوونکو مشرانو د پرېکړو یوه موضوع وه. بیړنۍ لویه جرگه چې په ۱۳۸۱/۳/۲۰-۱۳۸۱/۳/۲۸ لمریز کال په کابل کې د لويي جرگې د خېمې په تالار کې پرانستل شوه، د افغانستان د تاریخي پېښو او د هېواد د مثبتو لاس ته راوړنو څخه گڼل کېږي. دې جرگې ځکه ارزښت درلوده چې د افغانستان د تاریخ په څو ورستیو لسیزوکې لومړی ځل و چې له یو زر او پنځه سوه څخه ډېرو افغانانو په کې د ټوپک له ژبې پرته د خبرو په ژبه د هېواد د برخلیک د ټاکلو په اړه خبرې کولې.
د بېړنۍ لويي جرگې د غړو شمېر یوزروشېږ سوه دوه پنځوس نفرو ته رسیده چې د خلکو له منځه په کې د هېواد په دننه او په بهرنیو هېوادونو کې افغان مهاجرینو هم گډون کړی وو. له دې څخه ۵۰ غړي انتصابي وو چې د لنډ مهالي اداري د رئیس لخوا ټاکل شوي وو. په افغانستان کې د لومړنۍ ټاکل شوې جرگې په نوم، (بیړنۍ لويي جرگې) وکولې شو چې د افغانستان د ملت د مهاجرینو په گډون د ټولو قومونو استازیتوب وکړي.
په دې جرگه کې چې د نړۍ د بېلابېلو هېوادونو ملاتړ ورسره ملگری و، په ځانگړې توگه د ښځو شتون په کې د پام وړ و.
د بیړنۍ لويي جرگې گډون کوونکو د افغانستان د انتقالي دولت مشر وټاکه. حامد کرزي د مسعوده جلال سره په سیالۍ کې وکولی شول چې د جرگې د گډون کوونکو زیاتې رای لاس ته راوړي چې د انتقالي اداري د مشر په توگه وټاکل شو.

## (دوه دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د افغانستان اسلامي انتقالي دولت** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د افغانستان د اسلامي انتقالي دولت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:**<br>• د افغانستان د اسلامي انتقالي دولت د جوړيدلو طريقه به وپيژني.<br>• د افغانستان د اسلامي انتقالي دولت مهمې دندې به فهرست کړای شي.<br>• په سوله ييزه توگه د واک او د ملي زعامت انتقال د طريقې اهميت ته دې قايل شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په فکر، د افغانستان اسلامي انتقالي دولت څرنگه منځته راغی؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې انتقالي دولت د دندو په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- په ۱۳۸۱ هـ ل کال کې د لنډمهالي دولت د وخت له پوره کېدلو وروسته، د بن د غونډې د تاریخي پریکړه لیک او د بیړنۍ لویې جرګې د فیصلو پربنسټ د افغانستان اسلامي انتقالي دولت چې په سرکي یې حامد کرزی و، جوړ شو.

۲- د افغانستان د اسلامي انتقالي دولت مهمې دندې داسې وې:

- د لویې جرګې لخوا د هېواد د اساسي قانون جوړول
- د ازادو او عادلانه ټول ټاکنو دایرول.
- د نویو روپیو چاپ او توزیع کول.
- د ملي اردو او ملي پولیسو جوړول او د عامو خلکو بې وسلې کول.
- په ۱۳۸۱ هـ ل کال کې لنډمهالې ادارې خپل ځای انتقالي ادارې ته پرېښود.

**اضافي معلومات**

په بیړنۍ لویه جرګه کې ګډون کوونکو د افغانستان د انتقالي دولت مشر وټاکه.

د لنډ مهالې ادارې مشر حامد کرزي وکولی شول چې په دې جرګه کې د ګډون کوونکو ډېرې رایې لاس ته راوړي او د انتقالي ادارې د مشر په توګه وټاکل شو.

انتقالي اداره دویم ګام و چې د بن په کنفرانس کې د سیاسي ثبات او دموکراسۍ پرلور د افغانستان روانول په کې په پام کې نیول شوی و. د بن د غونډې د ژمنو سره سم لنډ مهاله اداره د ثبات او دموکراسۍ پرلور د افغانستان د روانولو د مسؤول په توګه معرفي شوه. په ۲۰۰۲ م کې بیړنۍ لویه جرګه پرانستل شوه او حامد کرزی د انتقالي دولت د مشر په توګه وټاکل شو.

لنډ مهال حکومت چې د شپږو میاشتو لپاره په پام کې نیول شوی و، موخه یې په افغانستان کې د ملي حاکمیت ټینګښت و، د ملي حاکمیت له راتلو مخکې افغانستان د ګډوډیو په واک کې و.

د افغانستان په بېلابېلو برخو کې بیلابېلو مشرانو په خپل فکر او نظر واک چلوه او په خپله خوښه یې د سولې او جګړو پلانونه جوړول. لنډ مهالي حاکمیت وکولی شول چې دغه ستونزه له منځه یوسي.

لنډ مهالې ادارې وکولې شو چې په پراخه کچه خپل فعالیت وکړي، دې ادارې دنده لرله، داسې لارې چارې ولټوي چې وکولای شي په افغانستان کې پرېې تل پاتې سولې او ثبات ته ورسېږي، له مهمو لارو څخه یوه په افغانستان کې د قانون جوړونې لاره وه. د قانون واک ته د رسیدلو لپاره، انتقالي دولت ته دنده ورکړ شوې وه چې لویه جرګه اساسي قانون واک ته د رسیدلو لپاره، انتقالي دولت ته دنده ورکړ شوې وه چې د اساسي قانون د تصویب لپاره لویه جرګه جوړه کړي او د افغانستان لپاره یو نوی اساسي قانون تصویب کړي.

البته په افغانستان کې د قانون د تشې د رامنځته کیدلو څخه د خلاصون په موخه ، د **۱۳۴۳** هـ . ل کال اساسي قانون د افغانستان لپاره د اساسي قانون، په نامه پیژندل شوی و.

## (درې دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| دمطلبونو شرح | سرلیکونه |
|---|---|
| **د هېواد د بیارغونې پیل** | د لوست موضوع |
| زده کوونکي دې دهیواد د بیارغونې د څرنګوالي په اړه معلومات ترلاسه | عمومي موخه |
| زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي<br>• پوه به شي چې ولې د هېواد په بیارغونه ټینګار شوی و او کومې خواوې یې د څوکلونو په اوږدوکې رغول شوې دي.<br>• په هېواد کې د بیارغونې لاس ته راوړنې به فهرست کړای شي.<br>• په زده کوونکوکې به د هېواد دآباد ولو او پرمختګ روحیه غښتلې شي | پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. |
| مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... | د لوست لارې چارې |
| کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... | د لوست اړین او مرستندویه توکي |
| تحریري، تقریري... | د ارزونې لارې چارې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسې په فکر، کله مو د بیارغونې کلمه اوریدلې ده؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د هېواد د بیارغونې په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۴۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- بیارغونه د هغو شیانو د بیاجوړولو په معنا ده، چې له منځه تللي دي او یاد ګټې اخېستلو وړنه وي ، لکه: پلونه، ښوونځي، سړکونه او داسی نور.

۲- له بده مرغه د کورنیو جګړو او د بهرنیو هېوادونو د لاس وهنو له کبله، ارتباطي لارې او سړکونه، تجارت، صنعت، ښوونه او روزنه ، کرنه او دهېواد نور زیربنایي بنسټونه یا بشپړ ویجاړ شوي اویاله منځه تللي دي.

۳-موږ ته یه کار دي چې دهېواد د آبادولو او رغولو څخه هیڅ ډول ډډه ونه کړو، زده کړه وکړو او د پوهو او ماهرو خلکو په څیر د خپل ګران هېواد او خلکو په چوپړ کې ځای ونیسو او خپل هېواد له بهر نیو لومو څخه خلاص کړو.

## اضافي معلومات

په ۲۰۰۱م کال په افغانستان کې د طالبانو د حکومت وروسته نړیوالې ټولنې کوښښ وکړ چې د یوې مهمې غونډې په کولو سره افغانستان د سیاسي انزوا څخه را و باسي. دملي حاکمیت را منځته کول، د اساسي قانون تدوین ، د پارلمان جوړول ، د دموکراسی پلي کول، د افغانستان بیارغول ، دمدني بنسټونو د جوړښت او د بشر حقونو د ساتنې لپاره کوښښونه د نړیوالې ټولنې له غوښتنو څخه وو. له طالبانو وروسته افغانستان سره د مرستې کولو لپاره د نړیوالې ټولنې د نظر یووالی په افغانستان کې د حاکمیت راوستلو لپاره ډیر ښه فرصت و چې افغانستان په تېره کې د هغې ساری نه دی لیدلی.

ددې نړیوالې اجماع ښېلګې د بن، توکیو، برلین، لندن، روم او فاریس په کنفرانس کې لیدل کیږي. دبن کنفرانس په ۲۰۰۱م کال د ډسمبرپه میاشت کې پرانستل شو، په دې کنفرانس کې کوښښ وشو چې ملي حاکمیت چې د افغانستان ټول خلك یې خوښوي رامنځته شي او واك یو ولسي حکومت ته انتقال شي. دتوکیو کنفرانس په ۲۰۰۲ م د جنوري میاشت کی دایرشو ، په دې کنفرانس کې ګډونوالو هېوادونو د افغانستان د بیارغونې لپاره د ۴، ۵ ډالره مرستې ژمنه وکړه. دبرلین کنفرانس د ۲۰۰۴م د مارچ میاشت کې جوړ شو ، نړیوالې ټولنې د افغانستان د بیارغونې لپاره د ۸ میلیارده ډالرو ژمنه وکړه. دلندن په کنفرانس کې چې په ۲۰۰۶م دفبروري میاشت کې د ایر شو په افغانستان کې د بیارغونې، د امنیت دټینګښت او د ښه حکومت کولو لپاره د ۱۰ میلیارده ډالرو مرسته وکړه. نړیوالې ټولنې د افغانستان د قضایي نظام د بررسی لپاره په ۲۰۰۷م د جوالایی میاشت کې د روم کنفرانس پرانسته.

دپاریس ناسته په ۲۰۰۸م د جون په میاشت کې د افغانستان د ۵ کلن پلان. دوړاندې کولو لپاره دایرشو او د ګډون کوونکو هېوادونو استازو ژمنه وکړه چې د افغانستان سره۱۰ میلیارده ډالر مرسته وکړي.

## (څلوردېرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | د مطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د جمهوري ریاست ټول ټاکنې |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې په هېواد کې د جمهوري ریاست د لومړنیو ټول ټاکنو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• په هیواد کې به د جمهوري ریاست د لومړنیو ټولټاکنو د طریقې په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>• د ۱۳۸۳ هـ.ل کال د جمهوري ریاست د ټولټاکنو د پیل کولوطریقه به بیان کړای شي.<br>• کوم حکومتونه چې د خلکو د رایو له مخې جوړیږي د هغو د آهمیت او مؤثریت ارزښت ته به قایل شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۳۵ دقیقې |
| - ستاسو په آند، زموږ د هېواد لومړنی ولسمشر په کوم ډول وټاکل شو؟ | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |
| - په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د جمهوري ریاست د ټول ټاکنې په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- په هېواد کې د ولسمشرۍ لومړنۍ ټولټاکنې په ۱۳۸۳ هـ ل د تلې په ۱۸ نېټه ترسره شوې.

۲- په ۱۳۸۳ هـ ل تاریخ د ولسمشرۍ په ټاکنو کې ۱۸ کسو خپل ځانونه د ولسمشرۍ د مقام د ګټلو لپاره درولي وو.

۳- د ټاکنو کمیسیون په ۱۳۸۳ هـ ل د لړم په ۱۳ نېټه د رایو د شمېرنې وروسته اعلان کړه چې حامد کرزی د ۵۰ سلنه څخه د ډېرو رایو په ګټلو سره، د هېواد د اساسي قانون له مخې، د افغانستان منتخب ولسمشر دی.

**اضافي معلومات**

د ولسمشرۍ دورې لومړنۍ ټاکنې یا د افغانستان لومړنۍ ټاکنې چې په ۱۳۸۳ هـ ل کال د طالبانو د حکومت له سقوط څخه وروسته سرته ورسیدلې، په ټاکنو کې د ګډون کوونکو زیاتو خلکو د پراخه هرکلي سره مخ شول.

آزادي راتلل او د مخکنیو دورو د محدودیتونو له منځه وړل کېدلي شي چې د دې دورې د ولسمشرۍ د ټاکنو د هرکلي اصلي لاملونه وګڼو. دا ټاکنې چې د لنډ مهالې او انتقالي حکومت څخه وروسته تر سره شوې. دومره د پام وړ امنیتي ستونزې یې نه لرلې او د ټاکنو مسؤولان بریالي شول چې د هیواد په ټولو برخو کې په ډېرو کمو امنیتي ستونزو کې ټاکنې ترسره کړي.

د ټاکنو په دې دوره کې له ټولو څخه زیات د مجاهدینو مشرانو خپل ځانونه د ولسمشرۍ لپاره نومولي وو او نژدې له هر قوم او ملیت څخه یوه کس د خپلو خلکو په استازیتوب د ټاکنو په کارکې بوخت و.

د افغانستان (د ټاکنو د تنظیم د ګډ دفتر) د اعلان شوي شمېر له مخې د ۱۳۸۲ هـ ل کال په ټاکنو کې د دې هېواد له اته میلیونه او سل زرو (۸۱۰۰۰۰۰) څخه زیاتو په شرایطو برابرو کسانو برخه اخېستلې وه.

د افغانستان د ولسمشرۍ په ټاکنو کې د اتلسو نوماندانو په لست کې چې په خپلوکې یې سیالي لرله د اوو لومړنیو نوماندانو نومونه په لاندېډول دي:

۱- حامد کرزی: له څلور میلیونه او څلورسوه زرو رایوڅخه زیات په (سلوکې ۵۵/۴).

۲- یونس قانوني: یومیلیون او درې سوه زره رای (په سلوکې ۱۶/۳).

۳- محمد محقق: له نهه سوه دېرشو زروڅخه زیاتې رای (په سلوکې ۱۱/۷).

۴- عبدالرشید دوستم: اته سوه زره رای (په سلوکې ۱۰).

۵- عبدالطیف پدرام: یوسل لس زره رای(په سلوکې ۱/۴).

۶- مسعوده جلال: یونوي زره رای (په سلوکې ۱/۱).

۷- سید اسحق ګیلاني: اتیازره رای (په سلواکې ۱)

یوولسو نورو ټولو نوماندانو په سلوکې له ۳ څخه لږی رایګټلې وې.

# (پنځه دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | له اسلام وړاندې د عربستان اقتصادي او ټولنیزه اوضاع |
| عمومي موخه | زده کوونکي دېله اسلام وړاندې د عربستان د ټولنیز او اقتصادي حالت په اړه معلومات زده |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• له اسلام وړاندېبه د عربستان پر ټولنیز او اقتصادي حالتپوه شي.<br>• په نقشه کې به د عربستان موقعیت وښودلای شي.<br>• د ناجایزو او ناروا کارونو پرضد به یې د مبارزې روحیه ژوندۍ شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- له اسلام وړاندې د عربستان اوضاع څرنګه وه؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د عربستان د اقتصادي اوضاع په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- مکه د عربستان يو ښار دی، د يمن، شام (سوريه) او حبشې د لارو په اوږدو کې پروت دی.

۲- له اسلام وړاندې په عربستان کې ټول قدرت او صلاحيت د نارينه وو په لاس کې و، ښځې له ټولو حقونو بې برخې وې او د عادي متاع په څير پلورل کېدلې. د نجونو پيدا کيدل ورته شرم ښکاريده او ژوندۍ به يې ښخولې.

۳- کوم عربان چې په ښارونو کې اوسيدل، زياتره په سوداګرۍ بوخت وو.

**اضافي معلومات**

**(په جزيرة العرب) کې د شرک د پيدا کيدلو په اړه درې نظريې دي:**

۱- ځينې باور لري چې شرک د جزيرالعرب له چاپيريال څخه پورته شوی او وايي چې کله حضرت اسماعيل (ع) پر حجاز واکمن شو. د جُرهم قبيله چې د هغې د مورني قوم څخه وه، مکې ته راغله، په مکه کې د هغوی ميشت کيدل او له مکې سره د هغوی اړيکې د دې لامل شوې چې له حرم څخه لرې نه شي.

په پای کې کله چې به د اړتيا له مخې سفر ته تلل، د حرم لرې خاوره يا د ډبرو ټوټې به يې له ځان سره وړلې، ترڅو چې اړيکې يې له حرم سره ټينګې وي، چې همدا خاورې او تيګې د وخت په تيريدو سره د احترام له مخې په بېلابېلو بڼو د عبادت مقام ته ورسيدلې، چې په پايله کې بت پرستي او شرک دود شو.

۲- ځينې پر دې باور دي چې کله عمرو بن لحی پرمکه کې واک ته ورسيده. هغه د سوداګرۍ لپاره شام (اوسنی سوريه) ته لاړ او هلته يې خلک وليدل چې د بتانو عبادت کوي، او هغه هم دغه کار ته ليوال شو او له هغو بتانو څخه يې (دهبل) بت له ځان سره مکې ته راوړ او خلکو ته يې وويل چې: د دې عبادت او درناوی وکړي.

۳- ځينې څيړونکي باور لري، کله چې د حنيف دين (د توحيد د عقيدې) او د خلکو ترمنځ واټن رامنځته شو، کرار کرار د انحراف نښې راپيدا شوې او همداراز د عربستان د ګاونډيو تمدنونو، لکه: سينا، روم او له بين النهرين څخه شرکي عقايدو پرې اغيزه وکړه او په پای کې د عربستان خلکو هم شرک ته مخه کړه.

## (شپږدیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **کعبه شريفه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د کعبې شريفې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:**<br>• د کعبې شريفې په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>• د کعبې شريفې اهميت او ديني مقام به بيان کړای شي.<br>• کعبه شريفه به د مسلمانانو د يووالي سمبول وګڼي او هغې ته به د اهميت په سترګه وګوري. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند له ديني پلوه کعبه څه ارزښت لري؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د کعبې شريفې په اړه خبرې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- ابراهیم (ع) د خپل زوی اسمعیل (ع) په ملتیا د خدای (ج) په امر کعبه ودانه کړه.

۲- د بني هاشمو قبیلې د حاجیانو د اوبو او خوړو تیارولو دنده لرله او د حج په مراسموکې به یې د حاجیانو لپاره اسانتیاوې برابرولې او پر دغه کارېې ویاړ کاوه.

۳- د مکې خلکو خپل بتان په کعبه کې ایښي وو او د هغو عبادت به یي کاوه.

**اضافي معلومات**

کعبه شریفه چي بیت العتیق او بیت الحرام هم یادیږي، د اسلامي نړۍ له سپیڅلو ځایونو څخه ده.

کعبه د مکې په ښار کې ده او د نړۍ د مسلمانانو قبله ده.

د روایتونو له مخې کله چې د زمزم چینه د اسمعیل (ع) تر پښو لاندې د ځمکې له منځه راوخوټېدله، خلك د همدغې چینې د اوبو له امله په دې سیمه کې راټول شول او د مکې ښار یې جوړ کړ، د څو کلونو په تیریدو سره ابراهیم (ع) د خپل زوی اسماعیل (ع) سره د خدای (ج) په امر د کعبې د ودانۍ بنسټ کیښود.

د ځینو روایاتو له مخې د کعبې ودانۍ لس ځلې جوړه شویده چې ترتیب یې په لاندې ډول دی:

د ملایکو او ادم (ع) له خوا، د شیث (ع) له خوا، د ابراهیم (ع) او اسمعیل (ع) له خوا، د عمالقه و له خوا، د جُرهم د قبیلې، د مضر قبیلې، د قریشو قبیلې، د عبدالله بن زبیر او د حجاج بن یوسف ثقفي له خوا جوړه شوې ده.

د کعبې اوسنۍ ودانۍ د حجاج بن یوسف ثقفي د وخت ده او بیا رغاونه یي په ۱۰۴۰ قمري کال (د عثماني پادشاهانو د څلورم سلطان مراد د خلافت) په وخت کې وشوه چې د سیلاب په واسطه زیانمنه شوې وه، ترسره شوه.

کعبه پر څلورو رکنونو (حجرالاسود، عراقي، شامي او یماني)جوړه شوې ده. د حاجیانو د طواف لاره د حجرالاسود له لوري پیل شوې ده، وروسته عراقي، شامي، یماني، رکنونو او بیرته حجرالاسود ته رسیږي.

حجرالاسود د کعبې له ډیرو سپیڅلو برخو څخه ده. دغه سپیڅلې ډبره له اسلام وړاندې او وروسته د پام وړ وه او د کعبې له اصلي عناصرو څخه ده.

## (اوه دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د رسول الله (ص) ماشومتوب** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د رسول الله (ص) د ماشومتوب په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:**<br>• د رسول الله (ص) د ماشومتوب دورې په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>• د رسول الله (ص) د ماشومتوب ژوند به بيان کړای شي.<br>• د رسول الله (ص) د سيرت له مطالعې سره به مينه پيدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- ستاسو په آند د رسول الله (ص) د ماشومتوب ژوند څه ډول و؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د ورکړل شوی فعاليت په اړه لوست بشپړ کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- رسول الله (ص) په ۵۷۱ م کال د عام الفيل له پېښې څخه يو کال وروسته نړۍ ته سترګې وغړولې.
۲- پلار یې عبدالله، موریې بي بي آمنه، نيکه يي عبدالمطلب او يو تره يي ابوطالب نوميده.
۳- د رسول الله (ص) رضاعی مور حليمه سعديه نوميدله.

**اضافي معلومات**

د رسول الله (ص) د زوکړې په وخت کې يوه هم د عام الفيل پېښه وه چې په لاندې ډول بيانېږي:

ابرهه د حبشي د سلطنت نايب چې يو ځان غوښتونکي او کينه ګر سړی و او پر دي يې حسد کاوه چې کعبه ځانګړی مذهبي او سوداګريز حيثيت لري، له همدي امله يي په صنعا کي د عبادت ځای (کليسا) جوړه کړه، ترڅو عربان د حج مراسم هماغلته ترسره کړي او د کعبې مقام د خلکو له پامه وغورځي او په دې ترڅ کې په خپله د خلکو پر وړاندې د مقام څښتن وګرځي. نو کله چې دا کار ونه شو، د کعبې د ورانولو هوډ يې وکړ او د جنګي فيلانو سره يي د کعبې په لور حرکت وکړ. قريشو له ويرې غرونو ته پناه يووړه او يواځې عبدالمطلب او څو تنه نور پاتې شول او له خدايه يي مرسته وغوښتله چې ابرهه او د هغه لښکر له منځه يوسي.

الله تعالی د سيند له لوري مرغان راوليږل او هر مرغه څو کوچنۍ ګيټګۍ(کاڼي) له ځان سره نيولي او دغه کاڼي يي د ابرهه پر لښکر ويشتل او له منځه به تلل. د حبشي پاتې لښکر د دغه حالت په ليدلو تېښته وکړه او له مکې څخه ووتل خو د لارې په اوږدو کې د هغوي ګڼ شمير له منځه لاړل، ابرهه هم وويريده او وتښتيد د لارې په اوږدو کې يې ګوتې پرلپسې لويدلې. کله چې صنعا ته ورسيد، په ډير ناوړ حالت کې مړ شو.

د قرآن کريم د فيل په سورت کي دغه کيسه ياده شوې ده.

له دغې ورځې وروسته عربانو د دغې پيښې درناوی کاوه او هغه يي په خپل تاريخ کي وليکله.

## (اته دیرشم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د رسول الله د ځوانۍ پړاو** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د رسول الله (ص) د ځوانۍ د پړاو په اړه معلومات زده کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:**<br>• د رسول الله (ص) د ځوانۍ د پړاو په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>• د رسول الله (ص) د ځوانۍ د پړاو په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>• د رسول الله (ص) اخلاق به د خپل ژوند تګ لاره اوبېلګه وګرځوي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- کله مو د رسول الله (ص) د ځوانۍ په اړه څه اوریدلي دي ؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>-زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې امانت او صداقت په اړه لوست بشړ کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- رسول الله (ص) په ځوانی کي په ښو اخلاقو ، ښه چلن، پر ژمنه وفادار، امانتګر او په رښتینولی مشهور و، له دې امله یي هغه (امین) باله.

۲- په ځانګړي تدبیر سره یي حجرالاسود په یوه څادر کې کیښوده او هره څنډه یي د قریشو د مشرانو په لاسونو کې ورکړه، چي په دي ترتیب هغه پرخپل ځای کیږدي، په دي توګه یي د غټو وینو تویولو مخه ونیوله.

۳- پیغمبر(ص) په ۲۵ کلنی کي له بي بي خدیجي (رض) سره واده وکړ.

**اضافي معلومات**

**حلف الفضول:** هغه تړون و چي د مکی د میړنیوځوانانو لخوا له ظلم سره د مبارزي لپاره جوړ شوی و.

د دې تړون لامل دا و چې د زبیدي قبیلې یو سړي مکې ته مالونه راوړي وو، د قریشو له معتبرو څخه یوه سړي، عاص بن وایل له هغه څخه مال واخیست او پیسي یې ورته ور نه کړې. هغه سوداګر د قریشو له مشرانو مرسته وغوښتله، خو د قریشو مشرانو د عاص د ټولنیز موقف له امله، د سوداګر مرسته ونه کړه او هغه یي وشړلو، سوداګر د مکې خلکو ته پناه ورووړله او د مکي له میړنیو ځوانانو یې مرسته وغوښتله. له دې کبله څو تنه میړني ځوانان د عبدالله بن جدعان په کورکي راټول شول او د الله (ج) په وړاندې یې تړون وکړ چي ټول به په یو آواز د ظالم پر وړاندي د مظلوم مرسته کوي. ترڅو د ظالم له لاسه د مظلوم حق ترېښو لاندې نه شي. وروسته د عاص بن وایل کورته ورغلل او د زبیدي قبیلې د سوداګر مال یي تري واخیست او هغه ته یي وسپاره. له هــغه وروسته عـــــربانو دغه تــــړون د میړنیو ځوانانو تړون (حلف الفضول) باله، رسول الله (ص) هم د دغه تړون له اصلي غړیو څخه وو، پر هغه به یي ویاړل او پر دغه تړون کلك ولاړ وو، تردې چې له بعثت وروسته یې هم ویل: په رښتیا چي د عبدالله بن جدعان په کورکې مې په هغه تړون کې ګډون کړی و، که په اسلام کي هم، دا ډول تړون ته وبلل شم، بلنه یې منم، په خدای قسم چې غصب شوی مال به یې اصلي خاوند ته سپارم او نه پریږدم چې ظالم پر مظلوم برلاسی شي.

# (نهه دیرشم) لوست

**وخت : (یو درسي ساعت)**

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د رسول الله (ص) بعثت** |
| **عمومي موخه** | زده کوونکي دې د رسول الله (ص) د بعثت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| **پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې.** | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:**<br>• د رسول الله (ص) د بعثت په څرنګوالي به پوه شي.<br>• د رسول الله (ص) څو صفتونه به لست کړای شي.<br>• د امانت ساتلو او رښتينولی په اهميت به پوه شي او له هغې سره به يې مينه پيداشي. |
| **د لوست لارې چارې** | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| **د لوست اړين او مرستندويه توکي** | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| **د ارزونې لارې چارې** | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br><br>- څه فکر کوئ چې رسول الله (ص) څرنګه په پيغمبرۍ مبعوث شو؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د رسول الله (ص) د بعثت په اړه لوست بشړ کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | <br><br>- زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br><br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br><br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | **۳۵ دقيقې** |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- پیغمبر(ص) به هرکال یوه میاشت د حرا غار ته تلو او هلته یي د الله (ج) د لوی قدرت او د طبیعت د مناظرو په اړه فکر کاوه.

۲- پیغمبر(ص) د ۶۱۰ م کال د رمضان په اوولسم په څلویښت کلنی کې په پیغمبرۍ مبعوث شو.

۳- له ښځو څخه بي بي خدیجه (رض)، له نارینه وو ابوبکرصـدیق(رض)، له کوچـنیانو علـي کرم الله وجهه او له مـریانو څخه زید بن حارث په لومړي سرکې پراسلام مشرف شول.

**اضافي معلومات**

کله چي پیغمبر(ص) د حرا په غارکې پرپیغمبرۍ مبعوث شو. کورته راغی او دغه پېښه یې بي بي خدیجې (رض) ته بیان کړه. بي بي خدیجې لازمه وګڼله چې له ورقه بن نوفل څخه چې د هغې د کاکا زوی او نصراني عالم و، مرسته وغواړي. د دې لپاره له پیغمبر(ص) سره یوځای د هغه کور ته ورغلل. پیغمبر(ص) چې هرڅه لیدلي وو، ورقه بن نوفل ته یې بیان کړل. ورقه له دغه بیان وروسته وویل: قسم په هغه ذات چې زما روح د هغه په واک کې دی، ته د دې امت پیغمبر یې او هماغه پیغمبر چې عیسې (ع) یې خبر ورکړی و، اوهغه ورځ به راځي. وروسته ورقه بن نوفل وویل: کاشکي زه تر هغه وخته ژوندی پاتې شم، ترڅو وکولی شم د دښمنانو په وړاندې ستا مرسته وکړم، ځکه دا ویره شته چې که ته خپل قوم ته بلنه ورکړې، هغوی به تا له ملکه و شړي.

# (څلوېښتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د رسول الله (ص) بلنه (دعوت)** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د رسول الله (ص) د بلنې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:**<br>• د پیغمبر(ص) د دعوت پرخرنگوالي به پوه شي.<br>• د پټ او ښکاره دعوت توپیر به وکړای شي.<br>• د ستونزو پر وړاندې به د صبر او استقامت روحیه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br><br>- ستاسو په آند، رسول الله (ص) له بعثت وروسته له کومو ستونزو سره مخ شو؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د رسول الله (ص) د دعوت په اړه بحثونه وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br><br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- رسول الله (ص) د بعثت په پیل کې په پټه خلك اسلام ته رابلل.

۲- پیغمبر(ص) د مشرکینو په ځواب کې وویل: په خدای قسم که مې لمر په ښي لاس او سپوږمی په کیڼ لاس کې کیږدي، ترڅو له دعوت څخه لاس واخلم، دا کار به هیڅکله ونه کړم، آن که په دغه لار کې چې خپل ځان هم له لاسه ورکړم.

۳- پیغمبر(ص) دری کاله وروسته خپل دعوت په ښکاره توگه پیل کړ.

**اضافي معلومات**

## د حمزه (رض) مسلمان کېدل

یوه ورځ ابوجهل د پیغمبر(ص) ترڅنگ تیریده، هغه ته یې کنځلې وکړې او وې ځوراوه.

پیغمبر(ص) ورته څه ونه ویل او مخ یې ترې واړاوه. په دغه مهال حمزه (رض) د پیغمبر(ص) کاکا او رضاعي ورور له هغه ځایه تېریده او د عبدالله بن جدعان وینزې هغه ته دغه حالت بیان کړ. حمزه (رض) په ډېره غوسه جومات ته ورغی او ابوجهل چې د خپل قوم په منځ کې ناست و په خپل غشي یې ټپي کړ او بیایې ورته وویل: آیا ته هغه چاته کنځلې کوي چې زه هم د هغه پر دین یم؟

هرڅه چې هغه پیغمر(ص) وایي، زه هم هماغه څه وایم. ابوجهل چپ شو.همدغه پېښه د حمزه (رض) د مسلمانېدلو سبب شوه.

## (یوځلویښتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | حبشې ته د مسلمانانو هجرت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې حبشې ته د مسلمانانو د هجرت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• حبشې ته د مسلمانانو د هجرت په ځرنګوالي به پوه شي.<br>• هغه عوامل به بیان کړای شي چې حبشې ته د مسلمانانو د هجرت سبب شول.<br>• د ستونزو پر وړاندې به د صبر او استقامت روحیه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br><br>- ستاسو په آند، حبشې ته د مسلمانانو د هجرت عوامل څه وو ؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته ځو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br>- له ځو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې حبشې ته د مسلمانانو د هجرت په اړه بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- مسلمانانو د مکې د کفارو د زورولو له امله لومړی وار حبشې ته هجرت وکړ.

۲- د قریشو کافرانو په خپلوکې ژمنه وکړه چې له مسلمانانو سره خپلې اړیکې وشلوي او له هغوی سره راکړه ورکړه او خپلوي ونه کړي.

۳- پیغمبر(ص) او یارانو یې درې کاله په ډېره سختۍ سره په شعب ابوطالب کې تېرکړل.

**اضافي معلومات**

د هجرت په لسم کال بي بي خدیجه کبری او ابوطالب چې له هرلوري د پیغمبر(ص) نږدې خپلوان او ملاتړي وو، وفات شول. دغو دوو غمجنو پېښو د پیغمبر(ص) پر روح داسې اغېزه وکړه چې دغه کال یې عام الخزن(د غم کال) وباله. خو بیاهم دغو دردمنو پېښو د پیغمبر(ص) د دعوت د فریضې پر اداء کولو کې ډېره لږه وقفه هم رانه وستله. کله چې د ابوطالب له مرگ وروسته د قریشو د کفارو ځورونې دومره سختې شوې چې د ابوطالب په ژوند کې یې د داسې ځورونو جرئت نشو کولای. له همدې امله پیغمبر(ص) د رسالت د دندې د پرمخ بېولو لپاره د بني ثقیف له قبیلې څخه د مرستې او د هغوی د مسلمان کېدلو لپاره طایف ته سفر وکړ او د بني ثقیف مشران او سرداران یې اسلام ته راوبلل، خو هغوي نه یواځې د پیغمبر(ص) بلنه ونه منله، بلکې وړو ماشومانو او ځوانانو ته یې دنده وسپارله چې پیغمبر(ص) وځوروي او له ښاره یې وباسي.

## (دوه څلویښتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **یثرب ته د مسلمانانو هجرت** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې یثرب ته د مسلمانانو د هجرت په ځرنګوالي پوه شي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• یثرب ته د مسلمانانو د هجرت په ځرنګوالي به پوه شي.<br>• یثرب ته د مسلمانانو د هجرت ارزښت به بیان کړای شي.<br>• د ستونزو پر وړاندې به یې د صبر او استقامت روحیه پیاوړې شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- مسلمانانو د څه له امله یثرب ته هجرت وکړ؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې یثرب ته د مسلمانانو د هجرت په اړه بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- څرنګه چې د یثرب مسلمانانو پیغمبر(ص) ته د پناه ورکولو او مرستې وعده ورکړه له دې امله د یثرب (مدینې) خلک د انصارو (مرسته کوونکو) په نامه یاد شول.

۲- د یثرب خلکو مسلمانانو ته د هرډول مرستې وعده ورکړه.

۳- یثرب ته په هجرت کې ابوبکرصدیق (رض) د پیغمبر(ص) ملګرتیا کوله.

**اضافي معلومات**

کله چې پیغمبر(ص) یثرب ته لاړ، د مدینې خلکو ډله ډله د پیغمبر(ص) مرستی ته راودانګل، د هغې (ص) د اوښ واګې یې نیولی وې او هریو غوښتل چې پیغمبر(ص) د هغوی په کورکې واوسي. خو پیغمبر(ص) وفرمایل: زما اوښ آزاد پریږدئ، ځکه چې دې ته امر شوی دی، اوښ حرکت کاوه او د بني نجار قبیلې د دوو تنو یتیمانو پرځمکه یې ګونډه ووهله، کوم ځای چې اوس مهال نبوي جومات دی.

پیغمبر(ص) د هغه ځاي د پیرودلو غوښتنه وکړه. هغو دوو تنو یتیمانو وویل: ای د خدای رسوله (ص)! موږ دغه ځمکه تاته ښنو، خو رسول الله (ص) دغه خبره ونه منله او په لس دیناره ورکولو یې هغه ځای وپېروده،کله چې رسول (ص) له اوښ نه راکوز شو ابوایوب خالد د زید نجاري زوی د پیغمبر(ص) د سفر وسایل راواخیستل او هغه یې خپل کورته بوتلو. ابوایوب انصاري (رض) د پیغمبر(ص) د مېلمه کېدلو ډېر لیوال و. کله چې پیغمبر(ص) هلته لاړ دکور په لومړي پوړکې کېناست، خو د ابوایوب (رض) خوښه نه وه ځکه هغه ټینګار کاوه چې رسول الله (ص) په پورته پوړکې ځای ونیسي. خو پیغمبر(ص) وفرمایل: ای ابوایوبه! «زما او زما د ملګرو لپاره چې کومه غوره ده، هغه د کور په لومړي پوړکې اوسېدل دي» له هغې ورځې وروسته پیغمبر(ص) له مسلمانانو وغوښتل چې د جومات په جوړولو کې برخه واخلي. مسلمانانو ورته لبیک وویل او پر اخلاص سره یې پردغه کار پیل وکړ. پیغمبر(ص) له مسلمانانو سره یوځاي خښتې او خټه وړله، ترڅو چې د جومات دیوالونه بشپړ شول، د جومات ستنې یې د قجورو د ونو له ډډونو او پرچت یې د قجورو شاخونه او پوستکي وکارول او جومات جوړ شو.

ټول مسلمانان ډیر خوشحال وو او د خوښۍ شعرونه به یې ویل او د پیغمبر(ص) په راتلو یې د الله شکر ایستلو.

پیغمبر(ص) اووه میاشتې د ابوایوب انصاري په کورکې و اوسېد، ترهغه چې نبوي مسجد جوړ شو او بیایې هلته (نبوي مسجد) ته خپل کور یوړ. وروسته بیا د مکې مسلمانان ټول په مدینه منوره کې له رسول الله (ص) سره یوځای شول او هېڅوك هم په مکه کې پاتې نه شول.

## (دري څلويښتم) لوست

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **په مدينه منوره کي د پيغمبر(ص) لارښوونې او تعليمات.** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې په مدينه منوره کې د پيغمبر(ص) د لارښوونو او تعليماتو په اړه معلوماتترلاسه کړي. |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• په مدينه منوره کې به د پيغمبر(ص) پهلارښوونو او تعليماتو پوه شي.<br>• په مدينه منوره کي به د پيغمبر(ص) لارښوونې او تعليمات بيان کړای شي.<br>• له رښتنولی، امانت، عدالت او برابرۍ سره به مينه پيدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده‌کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- پيغمبر(ص) په مدينه منوره کې خلکو ته څه ډول زده کړی ورکولې؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده‌کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د پيغمبر(ص) د لارښوونو په اړه په خپلوکې بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- پیغمبر(ص) خلك د لمانځه، روژې، زکات، حج اداکولو او همداراز ښوکارونو، لکه: اخلاص، رښتیا ویلو، مېرانې، برابرۍ، عدالت، صبر، یودبل درناوي، د یتیمانو کفالت، له غریبانو سره مرسته، د مور او پلار درناوي، له ښځو او نارینه و او... سره ښه چلن ته رابلل.

۲- پیغمبر(ص) خلك له شرک، خرافاتو او ناوړو کارونو څخه چې د جاهلیت په زمانه کې دود وو منع کول.

۳- پیغمبر(ص) به د زیاترو کارونو په ترسره کولو کې له صحابه وو سره سلا مشوره کوله.

**اضافي معلومات**

کوم وخت چې پیغمبر(ص) له مکې څخه مدینې ته هجرت وکړ، د مهاجرینو او انصارو ترمنځ د وروړگلوۍ تړون وشو، هغه مهال چې د مکې مسلمانانو مدینې ته هجرت وکړ، بې شتو شول او د غربت له وجې یې په مدینه کې د ژوند کولو توان نه وو، له دې امله پیغمبر(ص) انصارو ته سپارښتنه وکړه چې د هغوی هریو دې مهاجرو ته په خپل کورکې ځای ورکړي او په اتفاق سره دې د ښه ژوند د تیرولو لپاره گډ کار وکړي ترڅو چې د مهاجرینو ژوند ښه شي او کله چې د هغوي اقتصادي حالت ښه شي او ځانته کورونه جوړ کړای شي، هغه مهال به بیا د مدینې له انصارو ځانته او گوښې ژوند غوره کړي.

وروسته له دې چې د مکې او مدینې د مسلمانانو ترمنځ د وروړولۍ تړون منځته راغی داسې پریکړه یې وکړه: هرمهاجر به یوه ورځ د جومات په جوړولو کې د خپلې خوښې کار کوي او بله ورځ به په خپل کار او کسب کې بوخت وي چې وکولی شي د خپل ژوند چارې او د هغه شخص د ژوند چارې چې دا یې په کورکې اوسي پوره کړي. د مدینې مسلمانانو هم دې ته ورته عمل کاوه خو په خپله پیغمبر(ص) د مدینې د هیڅ اوسیدونکي سره د وروړۍ تړون ونه کړ، ځکه هغه وېره لرله چې دا کار به د نورو مسلمانانو د خپگان سبب شي.

## (څلورڅلويښتم) لوست

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د مکې فتحه او د رسول الله (ص) رحلت** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دېد مکې د فتحې او د پيغمبر(ص) د رحلت په اړه معلومات ترلاسه |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:**<br>• د مکې د فتحې او د رسول الله (ص) د رحلت په اړه به پوه شي.<br>• په حجة الوداع کې د پيغمبر(ص) وينا به بيان کړای شي.<br>• د باطل په وړاندې د حق د مبارزې د روحيې رامنځته کول. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- څه فکر کوئ، مکه معظمه څرنګه فتحه شوه؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې لاندې تش ځايونه دي په مناسبو جملو ډک کړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- په شپږم هجري کال چې د مکې د کفارو او مسلمانانو ترمنځ د حدیبې تړون لاسلیك شو، په اتم هجري کال د مکې د کفارو لخوا مات شو، نو له دې امله پیغمبر(ص) لس زره کسیز لښکر جوړ او د مکې په لوري یې حرکت وکړ. کله چې مکې ته ورسیدل ابوسفیان او د قریشو نور مشران له جگړې پرته تسلیم شول او مکه فتحه شوه.

۲- پیغمبر(ص) د هجرت په یوولسم کال له نړۍ څخه رحلت وکړ.

۳- د پیغمبر(ص) شخصیت داسې وو چې قرآن د هغه په وجود کې عملي شوی و او د هغه ژوند د مسلمانانو لپاره یوه ژوندۍ بېلگه وه.

**اضافي معلومات**

کله چې د اسلام دین بشپړ شو، دغه آیت نازل شو: « نن مې ستاسو لپاره ستاسو دین بشپړ کړ او خپل نعمتونه مې پرتاسو تمام کړل او ستاسو لپاره مې، اسلام د دین په توگه خوښ کړ»ۀ پیغمبر(ص) خپل رسالت او الهي امانت سرته ورسوه د خدای په لاره کې یې د جهاد حق پوره کړ.

الله (ج) خپل پیغمبر(ص) ته داسې وفرمایل: ژباره«کله چې د الله (ج) نصرت راشي، ته به خلك ووینې چې ډله ډله د اسلام پردین کې داخلیږي نو د خپل رب ستاینه وکړه او له هغه څخه ښښنه وغواړه چې هغه الله تعالی ډیر توبه قبلوونکی دی».

# (پنځه څلویښتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **په جزیرة العرب کې اسلام او د هغه بدلونونه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې په جزیرة العرب کې د اسلام او د هغه د بدلونونو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• په جزیرة العرب کې به د اسلام او د هغې د بدلونونو په اړه معلومات ترلاسه کړي.<br>• په جزیرة العرب کې به د اسلام بدلونونه بیان کړای شي.<br>• د اسلامي تاریخ له مطالعې سره به یې مینه پیدا شي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۳۵ دقیقې |
| - ستاسو په آند اسلام په جزیرة العرب کې څه بدلونونه رامنځته کړل؟ | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟ | |
| - د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي. | - د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي. | |
| - د لوست متن پرلوړ اواز لولي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - وروسته څو زده کوونکو ته لارښونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |
| - په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي. | - په غور سره غوږ نیسي. | |
| - له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې په جزیرة العرب کې د اسلام د رامنځته کړیو بدلونونه په اړه بحث وکړي. | - په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي. | - ځوابونه ورکوي. | |
| - لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- **تراسلام وړاندې د مشرکینو ناوړه عادتونه:** لوټ او تالان، د نجونو ژوندي ښخول، وژنې، شراب خوړل، کوډې (سحر) او داسې نور.

۲- تر اسلام وړاندې په جزیرة العرب کې د یهودیت، نصرانیت، بت لمانځنه، د لمر، سپوږمۍ، ستورو او د داسې نورو عبادت دود و.

۳- هغه غوره اخلاق چې اسلام راوړل:د امانت ساتل، رښتیا ویل، عدالت، د انسان د حقونو مرعاتول، د مور او پلار ګاونډیو، ښځو، نارینه و او د ماشومانو د حقونو درناوي وو.

**اضافي معلومات**

د اسلام د مبارک دین د راتګ په لومړیو کې په عربستان کې کفر او وحشت حکومت کاوه. د عربانو اخلاق ډیر بد شوي وو، قمار او شراب خوړل دود وو. کرکه او بې رحمي دومره وه چې آن ژوندۍ لوڼې یې ښخولې، چورچپاول او لارې وهل دود و.

د ښځو حقوق یې هیڅ نه پیژندل او د عادی متاع په شان به یې پلورلې.

د عربي بیلابیلو قرمونو ترمنځ اوږدو جګړو هغوی د تباهۍ کندې ته غورځولي وو. وینې تویولو هغوې وروسته پاتې او بې ارزښته کړي وو، دغو لاملونو نورې بدې پیښې هم له ځان سره لرلې، داسې چې کله خو به د هغوی ترمنځ جګړې ۴۰ کاله اوږدې شوې چې له امله به یې په زرګونو انسانان وژل کېدل.

لنډه دا چې بشریت د محمد (ص) له بعثت د ځان وژنې لاره نیولې وه، خلکو خپل خالق هیر کړی و او د خیر او شرتوپیر یې نه شو کولای. ځکه خو الله تعالی د بشریت د ژغورولو لپاره رسول الله (ص) راولیږه ترڅو ظلم، جهل او ناپوهي له منځه یوسي او پرځای یې د اسلام ډیوه بله کړي، په جزیرة العرب او ټوله نړۍ کې لوی بدلون رامنځته کړي.

## (شپږڅلویښتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د ابوبکرصدیق (رض) خلافت** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د ابوبکرصدیق (رض) د خلافت د دورې په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:**<br>• د مسلمانانو د لومړي خلیفه د خلافت په څرنګوالي به پوه شي.<br>• د ابوبکرصدیق (رض) د خلافت مهم کارونه به بیان کړای شي.<br>• له رښتینولۍ او صداقت سره به مینه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي: | | ۳۵ دقیقې |
| - ستاسو په آند د اسلام لومړنی خلیفه څوک و؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |
| - زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي. | - له لارښوونې سره سم عمل کوي . | |
| - په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي. | -کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | |
| - لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د ابوبکرصدیق (رض) د خلافت په اړه بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د پیغمبر(ص) له رحلت وروسته مهاجرین او انصار په سقیفه بنی ساعده کي راټول شول ترڅو د مسلمانانو د چارو د تنظیمولو لپاره یو ښه او وړ شخصیت د خلیفه په توګه وټاکي. له یو لړ مشورو وروسته یي د یوولسم هجري کال د ربیع الاول په میاشت کې حضرت ابوبکرصدیق (رض) د خلیفه په توګه وټاکه او ټولو انصارو او مهاجرو ورسره بیعت وکړ.
۲- د پوښتنې د ځواب لپاره د لوست متن ته وګورئ.
۳- د پوښتنې د ځواب لپاره د لوست متن وګورئ.

**اضافي معلومات**

خلافت یو ډول حکومت دی چې یوازې د اسلامي نظام لپاره دی په دې نظام کې به خلیفه د مسلمانانو ټولې دیني او ټولنیزې چارې د اسلامي شریعت د اصولو (قرآن او سنتو) په رڼا کې تنظیمولې.

د اسلام د خلیفه دنده یواځې په سیاست او حکومت کې نه تامیرېږي، بلکې د خلیفه ډېره مهمه دنده د ستر څښتن تعالی د بندګانو اصلاح، ارشاد او لارښوونه وه چې پدې برخه کې له ټولو امکاناتو څخه معقوله او هراړخیزه ګټه واخلي. ټولنیز عدالت رامنځ ته کړي او د خلکو د سوکالی لپاره هڅه وکړي ، همدا رنګه خلیفه مکلفیت درلود چې د اسلام سپیڅلی دین خپورکړي او د اسلامي نظام لمن په نړۍ کې وغزوي. ځکه چې په دې نړۍ کې خلیفه د مسلمانانو او په اخرت کې د الله (جل جلاله) په وړاندې مسؤول او ځواب ورکوونکی دی.

# (اوه څلویښتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د حضرت عمر (رض) خلافت** |
| عمومي موخه | زده کوونکې دې د عمر (رض) د خلیفه کېدلو او د هغه د لاسته راوړنو په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>• د عمر (رض) د خلافت په دوره به پوه شي.<br>• د عمر (رض) د خلافت دوره او لاسته راوړني به بیان کړای شي.<br>• د ټولنیز عدالت په رامنځته کولو سره به مینه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br><br>- ستاسو په نظر د اسلام دویم خلیفه څوك و؟<br>- د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د حضرت عمر (رض) د بعثت په اړه بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیك ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br><br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د لوست متن ته دې وکتل شي.

۲- شپږ تنه يې وټاکل ترڅو د هغه له شهادت وروسته يوتن خليفه وټاکي.

۳- حضرت عمر(رض) داسي شخصيت و چي هرڅا ورسره په آساني ليده کاته کولای شو.

د شپې به يې گزمه کوله، ترڅو د خلکو احوال واخلي. د قضاوت پرمهال يې د خپل اولاد او نورو ترمنځ هېڅ توپير نه کاوه او په عدل او انصاف کې مشهور و.

**اضافي معلومات**

د حضرت عمر فاروق(رض) د خلافت يوه مهمه پېښه د مسلمانانو لپاره د فلسطين فتح وه چې د پوځي او تبليغاتي اړخه د ډير اهميت وړ وه ځکه چې د اقصی جومات (د مسلمانانو لومړی قبله) په دې سيمه کې دی. د دې اهميت له کبله حضرت عمر(رض) پخپله دې سيمې ته سفر وکړ او له مسيحيانو سره يې تړون لاسليک کړ او د دوی د حقوقو درناوی يې وکړ. د شام او فلسطين خلکو چې کلونه يې د روم د امپراتورۍ د بدبه او ښکلا ليدلې وه، کله چې د اسلام د سپاهيانو له ساده وضعې او د مسلمانانو د خليفه حضرت عمر فاروق(رض) له نرم رفتار سره مخامخ شول، حيران پاتې شول.

## (اته څلويښتم) لوست

وخت : (يو درسي ساعت)

| سرليکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د حضرت عثمان (رض) خلافت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د عثمان (رض) د خليفه کيدلو د څرنگوالي په اړه معلومات ترلاسه |
| پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې. | زده کوونکي دې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي:<br>• د عثمان (رض) د خلافت د دوري په اړه به پوه شي.<br>• د دغې دوري مهم کارونه به لست کړای شي.<br>• له سخاوت سره به مينه پيدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ييز فعاليت... |
| د لوست اړين او مرستندويه توکي | کتاب، تخته، تباشير، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحريري، تقريري... |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکوفعاليتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنيو فعاليتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- د عثمان (رض) په خلافت کې کوم کارونه ترسره شول؟<br>- د نوي لوست سرليک پرتخته ليکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاگانو چې نه پوهيږي له ځان سره دې وليکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحگانو چې زده کوونکي نه پوهيږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ وليکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشريح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشريح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ويشي او لارښوونه ورته کوي چې د حضرت عثمان (رض) د خلافت په اړه بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | - زده کوونکي بيلابيل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرليک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح گانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې وليکي.<br>- په غور سره غوږ نيسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ويشل کيږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډيز ته غوږ نيسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقيقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د عثمان (رض) د خلافت دوره دولس کاله وه.

۲- د شمالي افریقا ځینې شمالي سیمې.

۳- د عمرفاروق (رض) له شهادت وروسته هماغه شپږ تنه (عثمان، علي، طلحه، زبیر، عبدالرحمن بن عوف او سعد بن وقاص(رض)، چي مخکې د عمر(رض) لخوا ټاکل شوي وو د اسلامي شورا په نوم راټول شول او له دریو ورځو سلا مشورو وروسته یې عثمان (رض) د خلیفه په توګه وټاکه.

**اضافي معلومات**

د حضرت عثمان (رض) د خلافت په وخت کې چې کوم کارونه رامنځته شول، یو دا و چې:

حضرت عثمان له دې ویرې څخه چې د قران عظیم الشان په قرائت کې اختلافات د دې لامل شي چې د الله(ج) کلام له نقصان سره مخامخ شي، نو ځکه یې امر وکړ، هغه مصحف چې د حضرت ابوبکر صدیق(رض) په وخت کې لیکل شوی و او د حضرت عمر(رض) د لور بي بي حفصې (رض) سره موجود و راوړ، له هغې څخه یې څو نسخې ولیکلې او دغه قرآنونه یې اسلامي ښارونو ته ولیږدول، چې دا کار په ښه توګه سرته ورسید او د حضرت عثمان(رض) له مهمو کارونو څخه شمیرل کیږي.

د حضرت عثمان (رض) د خلافت په مهال د اسلامي پوځ په تشکیل کې سمندري لوی ځواک هم جوړ شو چې د قبرس په ټاپو کې یې بری ترلاسه او بیا د قسطنطنیې د نیولو په فکر کې شول.

## (نهه څلویښتم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | د حضرت علی (رض) خلافت |
| عمومي موخه | زده کوونکي دېد علی (رض) د خلافت په اړه معلومات ترلاسه کړي. |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | زده کوونکي دي د لوست په پای کی لاندي موخو ته ورسیږي:<br>• د علی (رض) د خلافت دوره به وپېژني.<br>• د علی (رض) خویونه به لست کړای شي.<br>• د صدر اسلام د تاریخ له لوستلو سره به مینه پیدا کړي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br>- د اسلام څلورم خلیفه څوک و؟<br>- د نوي لوست سرلیك پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د علی (رض) د صفاتو په اړه خبرې اترې وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنۍ دنده ورکړي. | - زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړي وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د عثمان (رض) له شهادت وروسته په دویمه ورځ مهاجرینو او انصارو په مدینه کي له علي (رض) سره بیعت وکړ او هغه یې د امیرالمومنین په توګه وټاکه.

۲- د جمل او صفین جګړې د علی (رض) او معاویه (رض) د پلویانو ترمنځ پېښې شوې چې د علی (رض) په ګټه تمامي شوې.

۳- علی کرم الله وجهه د عبدالرحمن بن ملجم په وسیله په داسي حال کي ټپي شو چې د سهار لمانځه د اداء کولو لپاره د جومات په لور روان و او د هماغه ټپونو له امله دوه ورځي وروسته شهید شو.

**اضافي معلومات**

حضرت علي (کرم الله وجهه) له بیعت اخیستلو وروسته خپل عاملان (والیان) اسلامي ولایتونو ته واستول. عثمان بن حنیف یې بصرې ته، عماره بن شهاب یې کوفې ته، عبدالله بن عباس یې یمن ته، قیس بن سعد بن عباده یې (ری) ته ولیږه، له هغه وروسته یې محمد بن ابی بکر او مالك اشتر یو په بل پسې مصر ته واستول او سهیل بن حنیف یې د شام د والی په توګه وټاکه. خو له دغو والیانو څخه هیڅ یو په خپل کار کې بریالیتوب تر لاسه نکړ ځکه چې په ټولو ښارونو کې اختلافات منځ ته راغلي وو.

## (پنځوسم) لوست

وخت : (یو درسي ساعت)

| سرلیکونه | دمطلبونو شرح |
|---|---|
| د لوست موضوع | **د خلفاي راشیدینو دورې ته لنډه کتنه** |
| عمومي موخه | زده کوونکي دې د خلفاي راشدینو د حکومت دځرنګوالي په اړه معلومات ترلاسه |
| پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې. | **زده کوونکي دي د لوست په پای کی لاندي موخو ته ورسیږي:**<br>• د خلفاي راشدینو د حکومت طریقه به وپیژني.<br>• د راشده خلفاوو د ژوند طریقه به بیان کړای شي.<br>• د راشدو خلفاوو کړني به د خپل ژوند تګ لاره وګرځوي او د هغې د عملي کولو څخه به خوند واخلي. |
| د لوست لارې چارې | مباحثه، پوښتنې او ځوابونه ، ډله ییز فعالیت... |
| د لوست اړین او مرستندویه توکي | کتاب، تخته، تباشیر، انځورونه ... |
| د ارزونې لارې چارې | تحریري، تقریري... |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکوفعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| - ښوونکی د لومړنیو فعالیتونو له سرته رسولو وروسته د زده کوونکو د هڅولو په موخه لاندې پوښتنه وړاندې کوي:<br><br>- ستاسو په آند، د راشدو خلفاوو دورې کومې ځانګړتیاوې لرلې؟<br>- د نوي لوست سرلیک پرتخته لیکي.<br>- د لوست متن پرلوړ اواز لولي.<br>- وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې لوست پرلوړ اواز سره ولولي.<br>- زده کونکو ته لارښوونه کوي چې د لوست متن له ځانه سره ولولي. په کومو لغتونو او اصطلاګانو چې نه پوهیږي له ځان سره دې ولیکي.<br>- په کومو لغتونو او اصطلاحګانو چې زده کوونکي نه پوهیږي ښوونکی دې هغه د تختې پرمخ ولیکي او معنا دې کړي.<br><br>- لوست تشریح کوي.<br>- له څو زده کوونکو څخه غواړي چې هغوی هم لوست تشریح کړي.<br>- زده کوونکي په ډلو ویشي او لارښوونه ورته کوي چې د خلفاي راشیدینو په اړه بحث وکړي.<br>- د ارزونې په موخه له کتاب څخه پوښتنې کوي.<br>- لوست دې رالنډ کړي او د لوست له متن څخه دې کورنی دنده ورکړي. | <br><br><br>- زده کوونکي بیلابیل ځوابونه ورکوي؟<br>- د نوي لوست سرلیک ته پام اړوي.<br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي .<br><br>-کوم لغتونه او اصطلاح ګانې چې ښوونکي معنا کړې وي له تختې څخه دي په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br><br>- په غور سره غوږ نیسي.<br>- له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- په ډلو ویشل کیږي او له لارښوونې سره سم عمل کوي.<br>- ځوابونه ورکوي.<br>- د لوست لنډیز ته غوږ نیسي او له لارښوونې سره سم عمل کوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

۱- د راشده خلفاوو حکومت، د خلکو حکومت او د هغوی په چوپړ کې و. په دغه دوره کې حکومت د عدالت، انصاف، برابرۍاو د ورورګلوۍ پرلور تبلیغ او بلنه ورکوله.

۲- د راشده خلفاوو د ژوند طریقه ساده وه، د ډول او سینګار ژوند یې نه خوښاوه. هرچا په هر وخت کولای شو، له هغو سره لیدل او کتل وکړي او خپلې ستونزې ورته ورسوي او هغوی هم خپل ځانونه د خدای (ج) او خلکو پروړاندې مسؤل او ځواب ورکوونکي ګڼل.

۳- د راشده خلفاوو د وخت په دولتي نظام کې قضاء،مالیات، ډاګ (پسته)، محاسبه، ښوونه او روزنه او پوځي نظام رامنځته شو او پرمختګ یې وکړ.

**اضافي معلومات**

**د خلفای راشدین د ځلاندې دورې څو بېلګې:**

- د خلفاي راشدینو پېر د الهي احکامو پر بنسټ ، د حضرت محمد(ص) په سنتو او پرهیزګارۍ ولاړ او په عدالت باندې پرمخ ولاړ.
- خلفای راشدین له ساده ژوند سره راغلل او لاړل،
- د خلفای راشدینو دربار، دولتي او سلطنتي شان او شوکت نه درلود،
- خلفای راشدینو ساده جامې اغوستلې او د عادي وګړو غوندې په کلیو او بازارو کې ګرځېدل،
- د خلفای راشدینو حکومت د تقوا، پرهیزګارۍ او عدالت له مخې د ټولو اسلامي دولتونو لپاره یوه ښه بیلګه وه.
- خلفاوو له خلکو سره نیک چلند کاوه.
- د خلفاوو خوراک د ډېرو فقیرو او غریبو وګړو سره یو شان و.

**منابع او ماخذونه:**


- خلفای راشدین،
- تاریخ تمدن اسلام، جرجی زیدان،
- تاریخ طبري،
- فتوح البلدان، بلاذري.
- اطلس تاریخ اسلام